

د پوهنې وزارت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او د ښوونکو
د روزنې معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو
د تالیف لوی ریاست

# د ښوونکي کتاب

# د دیني ښوونې

# د تدریس لارښود

## شپږم ټولګی





moe.curriculum@gmail.com

د چاپ کال: ۱۳۹۷ هـ. ش






**د پوهنې وزارت**

د تعلیمي نصاب د پراختیا او د ښوونکو د روزنې معینیت

د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی ریاست

## د ښوونکي لارښود

# اسلامي ښوونه او روزنه

## شپږم ټولګی

**د چاپ کال: ۱۳۹۷هـ.ش.**

**ليکوالان:**

ــ ګل آقا شايق

ــ سيد احمد شريفی

ــ صديق الله حبيبی

ــ نور الحق عارف

**علمي ايډيټ:**

ــ ګل آقا شايق

**ديني، سياسي او فرهنګي کميټه:**

ــ محمد آصف کوچی

**د څارنې کميټه:**

ــ دکتور اسدالله محقق د تعليمي نصاب د پراختيا او د ښوونکو د روزنې معين.

ــ دکتور شيرعلي ظريفي د تعليمي نصاب د پراختيا د پروژې رئيس.

ــ دکتور محمد يوسف نيازی د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي کتابونو د تاليف لوی رياست سرپرست.

**ډيزاين:** سيدکاظم

**د چاپ د سمون چارې:** محمد کبير حقمل د پوهنې وزارت د نشراتو او اطلاعاتو رئيس



## ملي سرود

دا وطن افغانستان دی     دا عزت د هر افغان دی
کور د سولې کور د توري     هر بچی یې قهرمان دی
دا وطن د ټولو کور دی     د بلوڅو د ازبکو
د پښتوناو هزاره وو     د ترکمنو د تاجکو
ورسره عرب، گوجر دي     پامیریان، نورستانیان
براهوي دي، قزلباش دي     هم ایماق، هم پشه یان
دا هیواد به تل ځلیږي     لکه لمر پر شنه آسمان
په سینه کې د آسیا به     لکه زړه وي جاویدان
نوم د حق مودی رهبر     وایو الله اکبر وایو الله اکبر

**بسم الله الرحمن الرحيم**

**د پوهنې د وزیر پیغام**

د لوی خدایﷻ ډېر شکر دی چې انسان یې په احسن تقویم کې پیدا او هغه ته یې د خبرو کولو توان ورکړ او د علم او فکر پر ګاڼه یې سمبال کړ. ډېر درود دې وي د اسلام پر ګران پیغمبر حضرت محمد مصطفیﷺ چې د انسانیت ستر ښوونکی دی او د رحمت، لارښوونې او روښنایي پیغام راوړونکی.

ښوونه او روزنه په هره ټولنه کې د بدلون او پراختیا بنسټ دی. د ښوونې او روزنې اصلي موخه د انسان د بالقوه ځواکونو فعالول او د هغه د پټو استعدادونو غوړول دي.

درسي کتاب د ښوونې او روزنې په بهیر کې یو مهم رکن بلل کیږي چې له نوو علمي بدلونونو او پرمختګونو سره اوږه په اوږه د ټولنې له اړتیاوو سره سم تالیف کیږي. درسي کتابونه باید د منځپانګې له مخې خورا بډای وي چې وکړای شي د علومو له نوو لاسته راوړنو سره مل دیني او اخلاقي زده‌کړې د نوو میتودونو له لارې زده‌کوونکو ته ولیږدوي.

دغه کتاب چې اوس ستاسو په واک کې دی، د همدغو پورته ځانګړنو پر بنسټ چمتو او تالیف شوی دی. د پوهنې وزارت تل زیار باسي چې په هیواد کې تعلیمي نصاب او درسي کتابونه د اسلامي ښوونې او روزنې او د ملي هویت د ساتلو پر بنسټ جوړ او له علمي معیارونو، نوو روزنیزو میتودونو او د نړۍ له علمي پرمختګونو سره سم چمتو کړي. د زده‌کوونکو استعدادونه په ټولو اخلاقي او علمي خواوو کې وغوړیږي او په هغوی کې د تفکر او نوښت توان او د پلټنې حس پیاوړی کړي. د خبرو اترو او پیرزوینې د فرهنګ دودول، د هیواد پالنې او د مینې او محبت د حس پیاوړی کول، ښځنه او پیوستون د پوهنې د وزارت نورې غوښتنې دي چې ښایي د لوست په کتابونو کې ورته پام وشي.

درسي کتابونه د ښه او مسلکي ښوونکي له درلودو پرته نشي کولای ټاکل شوي موخې ترلاسه کړي. ښوونکی د ښوونې او روزنې یو مهم جزء او د ښوونې او روزنې د پروګرامونو پلي کوونکی دی. د هیواد له ژمنو او زړه سواندو ښوونکو څخه، چې د تورتم او ناپوهۍ په وړاندې یې جګړه خپله دنده ګرځولې، دوستانه هیله لرم د تعلیمي نصاب په دقیق او مخلصانه تطبیق کې د هیواد ماشومان، نجونې او تنکي ځوانان د پوهې، اخلاقو او معنویت لوړو څوکو ته ورسوي.

د هیواد د زده‌کړې د نظام بری د خلکو له جدي مرستو پرته امکان نه لري. له دې امله له ټولو قشرونو او د ملت له شریفو خلکو، په تیره بیا له کورنیو او د زده‌کوونکو له درنو اولیاوو څخه هیله لرم چې د معارف د موخو د لاسته راوړو په برخه کې له هیڅ ډول مرستې څخه ډډه ونه کړي. دغه راز له ټولو لیکوالو، پوهانو، د ښوونې او روزنې له ماهرینو او د زده‌کوونکو له محترمو اولیاوو څخه هیله کیږي چې په خپلو رغنده نظرونو، وړاندیزونو او نیوکو د درسي کتابونو په لاښه والي کې د پوهنې له وزارت سره مرسته وکړي.

لازمه بولم له ټولو ښاغلو مؤلفانو، د پوهنې وزارت له اداري او فني کارکوونکو او له ملي او نړیوالو بنسټونو څخه، چې د دغه کتاب په چمتو کولو، چاپولو او ویش کې یې زیار ایستلی او مرسته یې کړې، مننه وکړم.

په پای کې له لوی خدایﷻ څخه غواړم چې په خپله بې پایه مهربانۍ له موږ سره د پوهنې د سپیڅلو ارمانونو په لاسته راوړلو کې مرسته وکړي. انه سمیع قریب مجیب.

**د پوهنې وزیر**

**دوکتور اسدالله حنیف بلخي**

**سرلیک ........................................................................................................................مخ**
د نبوي احادیثو مرتبه ......................................................................................................١
د حدیث ډولونه....................................................................................................................٦
شفاعت ........................................................................................................................٩
د صحابه کرامو مقام او درجه ....................................................................................................١٢
یمین (قسم) او ډولونه یې ....................................................................................................١٥
شرک ........................................................................................................................١٨
دشرک ډولونه....................................................................................................................٢٣
ریاء ........................................................................................................................٢٤
شرعي احکام....................................................................................................................٢٧
د غسل فرضونه او واجبوونکي: ....................................................................................................٣٠
روژه ........................................................................................................................٣٣
د روژې فرضیت....................................................................................................................٣٦
د روژې ډولونه: ....................................................................................................................٣٩
د روژې مفسدات....................................................................................................................٤١
د تراویح لمونځ:....................................................................................................................٤٣
اعتکاف ........................................................................................................................٤٦
د فطر صدقه ....................................................................................................................٤٩
زکات ........................................................................................................................٥١
د زکات نصاب ....................................................................................................................٥٤
د غلو دانو او مېوو زکات ....................................................................................................٥٧
د حیواناتو زکات ....................................................................................................................٥٩
د زکات مصارف ....................................................................................................................٦١
حج او مسایل یې ....................................................................................................................٦٤
حیاء ........................................................................................................................٦٧
تواضع ........................................................................................................................٦٩
صله رحمی د خپلولۍ پالل ....................................................................................................٧١
صداقت (رښتینولي) ....................................................................................................................٧٣
د مور او پلار پیروي....................................................................................................................٧٥
اسراف ........................................................................................................................٧٧
حجاب (پرده)....................................................................................................................٨٠
د صدقې فضیلتونه ....................................................................................................................٨٢

لومړی درس

# سرلیک: د نبوي احادیثو مرتبه

صفحه: ۱

وخت: (یو درسي ساعت) ۴۵ دقیقې

**د لوست موخې: زده کوونکي باید:**

د اسلام ددین دویمه منبع وپیژني.

د حدیثو او سنتو په معنا او مفهوم وپوهیږي.

د حدیثو مقام او رتبه بیان کړی شي.

عقیده ولري چې حدیث هم د الله تعالی خبرې دي خود رسول اللهﷺ پر ژبه.

## اړینه پوهه

### د سنت او حدیث تعریف

د سنت کلمه په عربي ژبه کې د لارې یا تگ لارې په معنا ده، برابره د ه نیکه او خوښه لاره وي یابـــده او ناوړه. اما د اصطلاح له مخې سنت په اسلامي علوموکې گڼې معناوې لري او پـــه مختلفـــو ځـــایونو کـــې استعمالیږي.

سنت د حدیثو او اصول فقهې په اصطلاح کې د نبي کریمﷺ له وینا، کړنې او تقریر څخه عبارت دی، اما تقریر: د هغه عمل څخه عبارت دی چې د رسول اکرمﷺ له صحابه وو څخه صادر شوی وي رســـول اللهﷺ تاییـــد او تاکید پرې کړی وي، یا یې د رضایت او موافقت په توگه سکوت پرې غوره کړی وي.

اما د فقهاوو په اصطلاح کې سنت د هغه حکم څخه عبارت دی چې د اهمیت او ارزښت په درجه کـــې د فرضو او واجبو څخه ټیټ او له مستحبو څخه لوړ وي. پوهیږو چې د فقهې په علم کې عملي احکام د قرآن او حدیثو څخه استنباط شوي د ارزښت او اهمیت د درجې له مخې په پنځه ډوله دي: فرض، واجب، سنت، مستحب او مباح.

### د حدیث تعریف

حدیث د لغوي معنا له مخې د نوي او جدید په معنا دی. او د اصطلاح له مخې د هغې معنا سره مترادف دی چې د اصول فقهې علما یې د سنتو په هکله کاروي، یعنی د نبی کریمﷺ وینا، فعل او تقریر ته ویل کیږي.

په هغه بحث کې چې همدا اوس موږ د هغه په هکله څیړنه کوو، سنت او حدیث دواړه مترادف دي، او هغه معنا ورڅخه مراد ده چې د محدثینو او اصول فقهې د علماوو په وړاندې کارول کیږي، ځکه زموږ موخه له دې بحث څخه د اسلامي شریعت لپاره د یوې بنسټیزې منبع په عنوان د حدیث او سنت د مرتبې بیان دی.

**د نبوي حديث او سنت حجيت او مرتبه**

د قرآن کريم څخه وروسته د اسلام دوهمه بنسټيزه منبع (سرچينه) د رسول الله ﷺ سنت دي. او له څوکمو منحرفو ډلو څخه پرته نور ټول مسلمانان د نبوي سنتو او حديثو پر حجت او دليل متفق نظر لري او هغــه د اسلامي شريعت دوهمه اساسي منبع ګڼي.

د سنتو حجت والی له دې کبله دی چې پيغمبرﷺ هم د قرآن مبلغ ( داعي) او هم د آيتونو مفسر او د هغه د عمومي رازونو، موخو او قواعدو بيانوونکی دی او هم د قرآن مجملو احکامو ته تفصيل ورکوونکی او هم د قرآن عملي تمثيلوونکی دی. قرآن د اسلامي نظام د عمومي اصولو، ټوليزو قواعدو او فکــري او اخلاقــي بنسټونو بيانوونکی دی. اما د هغه د جزياتو او تفصيلاتو بيان او د هغه د عملي تطبيق څرنګــوالی د رســـول اللهﷺ سنتو ته پريښودل شوي.

له همدې کبله نبوي سنتو ته مراجعه د احکامو د تفصيلي پيژندنې او د هر اړخيزه پوهې په خــاطر لازمــه او اجتناب نه منونکې ده. د بيلګې په توګه، د لمانځه، روژې، زکات او حج د اداء امر چې د اسلام له ارکـــانو څخه ګڼل کيږي په قرآن کريم کې مجمل ( په لنډه توګه) ذکر شوي اما تفصيلات يې لکه د پنځــه ګونـــو لمونځونو شمير، د لمانځه رکعتونه، د لمانځه وختونه، شرطونه، ارکان، د لمانځه ادبونه او د اداء څرنګوالی يې، د زکات د نصاب کچه، د هغه د وجوب شرطونه او د هغه د اندازو اداء کول او د لګښت او مصــرف لارې يې.

او په همدې توګه د روژې د فريضې اړونده نورې لس ګونه مسئلې او نور ديني او دنيوي امور (چارې) بايد له سنتو څخه واخستل شي، نو ځکه الله تعالی فرمايي:

﴿وَأَنزَلْنَا إِلَيْكَ الذِّكْرَ لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ إِلَيْهِمْ وَلَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ﴾(النحل ۴۴).

**ژباړه:** او تاته مو هم پند ورکوونکی قران نازل کړی چې خلکو ته هغه څه بيان کړې چې ورته نازل شوي او کيدای شي چې هغوي په خپله هم فکر وکړي.

او همدارنګه الله تعالی فرمايي: ﴿لَقَدْ مَنَّ اللّهُ عَلَى الْمُؤمِنِينَ إِذْ بَعَثَ فِيهِمْ رَسُولاً مِّنْ أَنفُسِهِمْ يَتْلُو عَلَيْهِمْ آيَاتِهِ وَيُزَكِّيهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَإِن كَانُواْ مِن قَبْلُ لَفِي ضَلالٍ مُّبِينٍ﴾ آل عمران: ۱۶۴

**ژباړه:** دا کره خبره ده چې الله تعالی له مؤمنانو سره ډېره لويه ښېګڼه کړې ده چې د هغوي يو تن يې رسول ور وليږه چې د هغه آيتونه پرې لولي، پاکوي يې کتاب او حکمت ور ښايي که څه هم دوی له رسول څخــه وړاندې ښکاره بې لياري وو.

الله تعالی په دې آيت کې خبر راکړی چې د خلکو د ښوونې په خاطر يې خپل رسول ته دوه څيزونــه ډالــۍ کړي دي: يو کتاب چې قرآن کريم دی او بل حکمت، د اسلام جمهور علماء او محققين ( څيړونکي) پــه دې نظر دي چې حکمت د کتاب نه پرته بل څيزدی چې د شريعت په احکامو علم او ددين اسرار دي، چې له هغو څخه په سنتو تعبير کيږي، ځکه الله تعالی حکمت په کتاب عطف کړی او دعربي ژبي د قوانينو مطــابق عطف د مغايرت غوښتنه کوي.

نورهم ډير آيتونه شتون لري چې په همدې معنا دلالت کوي، د بيلګې په توګه د النحل سورت په ۱٦۴ آيت کې الله پاک تصريح کړې ده چې که مسلمانان د کوم آيت يا حکم د پوهې په هکله سره مختلف شي همدا رسول اکرمﷺ دی چې په هغه کې د حق وجه بيانوي.

په نورو ځايونو کې يې د رسول الله ﷺ د احکامو او فيصلو په وړاندې په ټولو مسلمانانو باندې پرته له قيــد او شرطه پيروي او غاړه ايښودل واجب کړي او د رسول اکرمﷺ د اوامرو او نواهيو څخه يې په اطاعــت لازمي حکم کړی دی. او په ګڼو آيتونو کې يې د رسول اللهﷺ اطاعت او پيروي د الله په اطاعــت پــورې پيوست کړي دي او د الله سره دوستي يې د رسول الله په اطاعت او پيروۍ پورې مشروطه کړې ده او دده د قوانينو له مخالفت څخه يې ژغورلي دي او آن تردې په ځنو آيتونو کې يې د هغه مخالفت کفر او د هغه لــه حکم څخه يې مخ ګرځونه د منافقت نښه ګڼلې ده. په همدې ترتيب په خپله رسول اللهﷺ هــم د ســنتو د متابعت په لزوم تاکيد کړی دی.

کوم احاديث چې په دې هکله له رسول اللهﷺ څخه روايت شوي د معنوي کثرت له مخې ټول د تواتر کچې ته رسيدلي دي، د بيلګې په توګه يې فرمايلي دي: (كُلُّ أُمَّتِي يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ إِلَّا مَنْ أَبَى قَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ وَمَنْ يَأْبَى قَالَ مَنْ أَطَاعَنِي دَخَلَ الْجَنَّةَ وَمَنْ عَصَانِي فَقَدْ أَبَى).

ژباړه: زما ټول امت جنت ته داخليږي، مګر څوک چې د هغه له داخليدو منع وکړي؟

وويل شوه: اې د الله رسوله! څوک منع راوړي؟ ويې فرمايل: هر څوک چې زما پيروي وکړي هغه جنت تــه داخليږي او هر څوک چې زما نافرماني وکړي په حقيقت کې يې د جنت له داخليدو منع کړې ده.

او همدارنگه نبی کریمﷺ فرمایلي دي: (أَلَا إِنِّي أُوتِيتُ الْقُرْآنَ وَمِثْلَهُ مَعَهُ).

ژباره: خبر اوسئ چې ماته قرآن راکړ شوی اوهم د هغه سره د هغه په څیر بل څیز.

او همدارنگه فرمایلي يې دي: (تَرَكْتُ فِيكُمْ أَمْرَيْنِ لَنْ تَضِلُّوا مَا تَمَسَّكْتُمْ بِهِمَا كِتَابَ اللَّهِ وَسُنَّةَ نَبِيِّهِ).

ژباره: ستاسو په منځ کې مې دوه څيزونه پريښي دي تر څو چې مو په هغو منګولې نښلولې وي هيڅکله به لار ورکي نشئ: (هغه) د الله کتاب او زما سنت دي.

له همدې کبله صحابه کرامو هم د نبی کریمﷺ د ژوندانه په مهال او هم له هغه وروسته د هغه د وينـــاوو، کړنو او تقريراتو په پيروي ځانونه ملزم کړي وو، پرته له هغه ځـــايونو چـــې هغـــه د رســـول اللهﷺ لـــه ځانګړتياووڅخه حسابيدل او ياېې په محض دنيوی اجتهادونو پورې اړيکې درلودې، هيڅکله يې ځان ته د هغه نه د سرغړونې اجازه نه ورکوله او دده د اوامرو په تر سره کولو کې يې يوه شيبه ځنډ نه کاوه او نه يې ترديد روا ګڼلو.

د سنتو سره د قرآن اړيکه داسې ده لکه د نقشې سره د مهندس اړيکه که چېرې اداره د يوه تعمير د آبادولو لپاره د يو پوه او لايق مهندس په لاس مفصله نقشه چې د هغه په جزياتو او تفصيلاتو بشپړه آشـــنايې ولـــري، ورکړي اوهغه د هغه عمل په تر سره کولو لپاره مؤظف کړي او هغه هم دا دنده په نيکه او احسنه وجـــه ادا کړي، په دې صورت کې که چيرې څوک هغه آبادۍ او هغه مهندس ته پاملرنه ونکړي او د هغه عمـــومي او کلي نقشې له مخې د جزياتو او تفصيلاتو په پلټنه کې شي، نو خپلې موخې ته به هيڅکله ونه رسيږي.

امام ابن حزم اندلسي ليکي: که څوک ووايي: زه له قرآن پرته په (بل څه) عمل نکوم، د امت په اجماع سره کافردی، ځکه په دې صورت کې بايد يوازې ځان د لمرله زوال څخه تر نيمې شپې پورې په يورکعت لمانځه ملزم کړي، او يوبل رکعت د سهار په مهال اداء کړي او بس. څرنګه تر ټولو کم عمل چې د لمانځه نوم پرې اېښودل کيږي همدا يو رکعت دی او اکثر حد يې شتون نلري، او هر څوک چې په دې باور اوسي کـــافر، مشرک او مباح الدم دی، ځکه په قرآن کې لمونځ مطلق ذکر شوی او د هغه د رکعتونو د شـــمير او اداء د څرنګوالي په هکله توضيح احاديثو ورکړې ده.

| وخت | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| | ښوونکی ټولګي ته دداخلیدو په مهال د سلام او حال احوال له پوښتلو څخه وروسته حاضري اخلي، د ټولګي نظم برابروي او خپل ځان زده کوونکوته وربیژني او د حدیثو د اهمیت او ارزښت په هکله لنډ معلومات ورکوي. او د لوست د سرلیک له لیکلو وروسته زده کوونکوته دنده سپاري څو لوست په پټه توګه مطالعه کړي.<br>بیا د بغلي عنوانو څخه په استفادې سره لوست زده کوونکو ته شرح کوي او په ځنو مهمو نکتو باندې زیات ترکیزکوي.<br>بیا له څو زده کوونکو څخه غواړي څو هر یو په خپل نوبت سره یو بغلي عنوان شرح کړي.<br>بیا زده کوونکو ته وخت ورکوي څو د حدیث حجتیت په هکله یوله بل نه پوښتنې وکړي.<br>وروسته له یو زده کوونکي څخه غواړي څو د حدیث تعریف ووایي. بیا زده کوونکي په دوه ډلو ویشي او هدایت ورکوي څو یوه ډله د سنت او حدیث د تعریف په هکله او بله ډله د حدیث د ارزښت او اهمیت په باره کې سره بحث او خبرې وکړي.<br>لنډیز<br>دا لوست په لاندې ټکو کې خلاصه کیږي:<br>۱- د محدثینو او د اصول فقهې علماوو په اصطلاح کې سنت د رسول الله ﷺ وینا، کړنې او تقریر ته ویل کیږي.<br>۲- تقریر: د هغه عمل څخه عبارت دی چې د رسول الله ﷺ په وړاندې د صحابه کرامو څخه یو عمل صادر شوی وي او رسول الله ﷺ هغه تایید کړی وي.یاپې پرې رضایت یا سکوت غوره کړی وي.<br>۳- د سنتو حجت والی له دې کبله دی چې پیغمبر ﷺ هم د قرآن مبلغ (داعي) او هم د آیتونو مفسر او دهغو د عمومي اسرارو، موخو او قواعدو بیانوونکی دی او هم د قرآن مجمل احکام تفصیلوي او د قرآن عملي تمثیل کوي.<br>کورنۍ دنده:<br>زده کوونکو ته دنده ورکوي څو د حدیث د تعریف او ارزښت په هکله څو کرښې لیکنه وکړي. | |

دوهم لوست

# د حديث ډولونه

صفحه:۳

وخت (۴۵) دقيقې

د لوست موخې: زده کوونکي بايد:

– د حديثو له ډولونو سره آشنايي حاصل کړي.

– د حديث په ډولونو و پوهيږي.

– د حديث ډولونه تعريف او بيان کړی شي.

– د حديث په هکله عقيده وساتي چې له قرآن څخه وروسته يې درجه ده.

**اړينه پوهه**

حديث د ارزښت او سند له مخې دوه مشهور تعريفونه لري چې په دې ډول شرح کيږي:

**لومړی– د ارزښت له مخې:** څنګه چې د حديث له تعريف څخه معلوميږي د پيغمبرﷺحديث د ماهيت او ارزښت له مخې په درې ډوله دی:

**الف– قولي حديث:** د هغه حديث څخه عبارت دی چې پيغمبرﷺ په مختلفو موضوع ګانو کې ويلــی وي لکه د پيغمبرﷺ دا وينا: **(إِنَّمَا الْأَعْمَالُ بِالنِّيَّاتِ وَإِنَّمَا لِكُلِّ امْرِئٍ مَا نَوَى فَمَنْ كَانَتْ هِجْرَتُهُ إِلَى دُنْيَا يُصِيبُهَا أَوْ إِلَى امْرَأَةٍ يَنْكِحُهَا فَهِجْرَتُهُ إِلَى مَا هَاجَرَ إِلَيْهِ).**

**ژباړه:** عملونه په نيت پورې اړه لري او د هر چا سره د هغه د نيت مطابق کړه وړه کيږي، نو که څــوک د دنيا لپاره هجرت کوي يا د يوې ښځې لپاره څو هغه په نکاح کړي نو هجرت يې د هغه څه لپاره دی چې د هغه لپاره يې هجرت کړی وي.

بله دا د نبی کريم ﷺ وينا ده چې فرمايي: ( لَاَضَرَرَوَ لَاضِرَارَ فِی الإِ سلاَمِ).

**ژباړه:**په اسلام کې د ضرر رسيدل او ضرر قبلول نشته برابره ده پرته له مقابلې وي يا د مقابلې په توګه وي.

همدارنګه پيغمبر ﷺفرمايي: ( إِنَّ الله قَد أَعطَی کُلَّ ذِی حَقٍّ حَقَّهُ فَلاَ وصِيّه لِوَارِثٍ)

ژباړه: الله جل جلاله هر د حق خاوند ته خپل حق ورکړی دی، بنا پردې د وارث لپاره وصيت نشته (منسوخ شوی دی)

**ب: فعلي حديث:** د هغه کړنو څخه عبارت دی چې پيغمبرﷺتر سره کړې وې لکه پنځه ګوني لمونځونه، د حج د مراسمو اداء کول، د پيغمبرﷺپه قضاوت سره حکم کول د مثال په توګه په مدعي يې شاهدان او په مدعي عليه باندې يې قسم لازم کړی دی.

**ج تقريري حديث:** د هغه ويناوو او کړنو څخه عبارت دی چې د پيغمبرﷺ په حضور يــا غيــاب کــې د صحابه کرامو رضی الله عنهم څخه صادر شوی وي، اما پيغمبرﷺ د مشاهدې يا اطلاع حاصلولو وروسته د

هغه په هکله سکوت کړی وي. بنابردې د پیغمبرﷺ تقریر د هغه له سنتونو څخه ګڼل کیږي لکه په جومات کې د ځوانو نیزه وهونکو په وړاندې سکوت غوره کول یا مثلاً د دوه وړوکو نجونو د سندرو ویلو په وړاندې دده سکوت او داسې نور.

**دوهم- د حدیث ډولونه دسند په اعتبار:**

حدیث د سند د اتصال او عدم اتصال په توګه په دوه ډولونو تقسیم شوی دی:

**الف- مرسل حدیث:**

دادهغه حدیث څخه عبارت دی چې د هغه د روایت په مهال تابعي د هغه صحابی نوم ذکر نکړي چې هغه یې د پیغمبرﷺ څخه روایت کړی دی. د بیلګې په توګه امام مسلم په خپل صحیح کې د سعید بن المسیب څخه روایت کړی چې: سعید بن المسیب وایي: پیغمبرﷺ د مزانبې له بیعې ( هغه بیعې څخه چې په هغې کې یو ډول ضرر وي) منع کړیده، سعید بن المسیب د تابعینو څخه دی هغه دلته د هغه صحابي نوم چې دا حدیث یې د رسول اللهﷺ څخه روایت کړی، نه دی ذکر کړي، بناپردې دا ډول حدیث ته مرسل وایي:

**ب- مسند حدیث:** د هغه حدیث څخه عبارت دی چې تابعي د هغه صحابي نوم چې د پیغمبرﷺ څخه یې روایت کړی ذکر کړي، مسند حدیث په درې ډوله دی: متواتر، مشهور او خبر واحد.

**متواتر حدیث:**

دلته لومړی د متواتر حدیث معنا او وروسې د هغه حکم بیانوو:

۱- د متواتر حدیث معنا: د هغه حدیث څخه عبارت دی چې د هغه راویان په لومړۍ، دوهمه او دریمه هجري پیړۍ یعني د صحابه وو، تابعینو او تبع تابعینو په زمانه کې په داسې اندازه زیات وي چې د عقل له مخې د هغوی اتفاق د دروغجن خبر پر روایت باندې ممتنع وي، لکه د قرآن کریم روایت، د پیغمبرﷺ د عملي سنتونو روایت، د لمانځه د رکعتونو اداء، د حج د شعائر ترسره کول، د زکات اندازه، د پاکۍ او طهارت څرنګوالی او داسې نور. اوځنې د پیغمبرﷺ له قولي احادیثو څخه دي لکه دا حدیث:

(إِنَّ اللَّهَ قَدْ أَعْطَى كُلَّ ذِي حَقٍّ حَقَّهُ فَلَا وَصِيَّةَ لِوَارِثٍ) یعنی الله جل جلا له هر د حق خاوند ته خپل حق ورکړی دی، بناپردې د وارث لپاره وصیت نشته.

همدارنګه رسول الله ﷺ فرمایی: (إِنَّ كَذِباً عليَّ لَيسَ كَكَذِ بٍ علىَ أَ حَد، مَن كذَ بَ علّىَ مُتَعَمّداً فَليَتَبَوَّ أَمَقعَدَه مِن النّار).

**ژباړه:** یعني ماته د دروغ خبرې نسبت کول بل هیچاته د دروغو د نسبت په شان نه دي، هر څوک چې ماته د دروغ خبرې نسبت وکړي، هغه خپل ځای په دوزخ کې چمتو کوي.

**۲- د متواتر حدیث حکم:**

دا چې متواتر حدیث د صحابه وو رضی الله عنهم څخه قطعي الورود او هم د پیغمبرﷺنه قطعی الثبوت دی، یعنی علم افاده کوي، نو منکر یې کافر ګڼل کیږي.

**مشهور حدیث:**

دلته لومړی د مشهور حدیث معنا او وروسته د هغه حکم بیانوو:

د مشهور حدیث معنا: مشهور حدیث د هغه حدیث څخه عبارت دی چې د راویانو شمیر یې په اوله پېړۍ یعنی د صحابه وو په زمانه کې د تواتر حد ته نه وي رسیدلی، خو وروسته مشهور شوی وي او په دوهمه او دریمه پېړۍ کې دومره زیاتو خلکو روایت کړی وي چې توافق یې د عقل له مخې د دروغو د خبر په روایت محال او ناشونی وي.

د مشهور حدیث حکم: هر کله چې مشهور حدیث د صحابه وو څخه قطعی الورود اما د پیغمبر ﷺ څخه قطعی الثبوت نه دی، یقین ته نږدې د ګمان افاده کوي، نومنکر یې کافر نه دی بلکې فاسق ګڼل کیږي.

**احاد حدیث:**

۱- د احاد حدیث معنا: احاد د هغه حدیث څخه عبارت دی چې د راویانو شمیر یې د متواتر حد ته نه وي رسیدلی او وروسته هم نه وي مشهور شوی.

۲- د احاد حدیث حکم: احاد حدیث چې کله د قرینو څخه خالي وي د ظن یعنی غالب ګمان افاده کوي، نو د هغه په موجب عمل پرې واجب، خو اعتقاد پرې ضروري نه دی، دا د اکثرو علماوو او فقهاوو مذهب دی.

د تدریس کړنلاره: پوښتنې او ځواب، انفرادي، ګروپي، توضیحي، تشریحي او مباحثوي.

دریم لوست

# شفاعت

صفحه: ۵

وخت: یو درسی ساعت (۴۵) دقیقې

موخې: زده کوونکي باید:

- د شفاعت معنا او مفهوم وپیژني.
- د شفاعت په ډولونو آشنایي حاصله کړي.
- آیا د الله له اجازې پرته څوک شفاعت کولای شي؟ دا بیان کړي.
- په قیامت کې د ښو کسانو په شفاعت کولو عقیده ولري.

**اړینه پوهه**

د اسلامي عقیدې له اصطلاحاتو څخه یوه اصطلاح شفاعت دی چې کله کله د عوامو په منځ کې د هغه څخه ناسم مفهوم مطرح کیږي بناپردې لازمه ده په دې هکله یې لږ روښنایي واچول شي.

**د شفاعت (سپارښت) تعریف:**

شفاعت په عربي ژبه کې د منځګړي په معنا دی او اثبات یې په آخرت کې د اسلامي عقیدې د مسلماتو لـــه ډلې او د آخرت په ورځ د ایمان جزء ګڼل کیږي. البته شفاعت په دنیا کې هم شتون لري. اما منظور ورڅخه یوازې د الله تعالی په وړاندې د یوه ژوندي شخص په واسطه د بل شخص د حاجت پوره کولـــو غوښـــتنه او دعاده، بناپردې د شفاعت کوونکي له مرګه وروسته د هغه واقع کیدل امکان نلري او یوازې د آخرت په کور کې واقع کیږي.

**د شفاعت ډولونه:**

پوهانو او د نظر خاوندانو دیني شفاعت په پنځو ډولونو ویشلی دی:

۱- عظمی یا ځانګړی شفاعت چې تر رسول الله ﷺ پورې ځانګړی دی او دا هغه امتیاز او ځانګړتیا ده چې په قرآنکریم او نبوي حدیث کې د مقام محمود په عنوان له هغه څخه یادونه شوې ده، لکه څنګه چې منان الله فرمایي:(عَسَى أَن يَبْعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامًا مَّحْمُودًا).

یعنی هیله ده چې پروردګار دې تا په محمود مقام ( ستاینې وړ ځای) کې راپورته کړي.

د مقام محمود نه مراد په دې آیت کې د قیامت په ورځ د الله تعالی په وړاندې د حضرت محمد ﷺ شفاعت دی.

څو الله تعالی د حشر په ډګر کې د منتظرو او سرګردانه مخلوقاتو په منځ کې حساب او فیصله پیل کړي:

او دا ډول شفاعت ټولو موجوداتو ته شاملیږي او د قیامت د ورځې ویره او هیبت ورڅخه لـــرې کـــوي او حساب او کتاب مخکې بیایي.

۲- د ځنو مؤمنانو لپاره شفاعت دی څو پرته له حساب او کتابه جنت ته داخل شي، دا ډول شفاعت هم د اسلام د لوی پیغمبرﷺ ځانګړتیا ده.

۳- عامه شفاعت:دهغه شفاعت ( سپارښت) څخه عبارت دی چې د ګنهګارو مؤمنانو لپاره چې د دوزخ وړ ګرځېدلي وي، تر سره کیږي، څو الله تعالی د هغوی له تقصیر او کمیو څخه تیرشي او جنت ته دداخلیدو لایق او وړ وګرځي. او یا د عذاب د څرنګوالي له مخې دوی ته په دوزخ کې د مودې د تخفیف لامل وګرځي.

دا ډول شفاعت تر رسول اللهﷺ پورې ځانګړی نه دی بلکې پرده برسېره نور انبیاء علیهم السلام، اولیاء، صالحین، شهیدان او پرښتې هم اجازه لري څو د ځنو ګنهګارانو لپاره شفاعت وکړي.

۴- د ځنو جنتیانو د درجو د زیاتوالي لپاره شفاعت دی.

۵- د دوزخ څخه د ځنو مؤمنانو د وتلو په خاطر دی او دا هغه وخت دی چې پروردګار ذات د عادل قانون په سبب چې هغوی په دوزخ کې د خپلو ګناهونو په سزا رسیدلي او د خپل محکومیت دوره یې پکې تیره کړې وي، دا شفاعت صورت نیسي د شفاعت منه یا رد د پوه او عالم پروردګار په حکمت او ارادې پورې اړیکې لري او دالله د فضل یا عدالت په هکله د ارزونې مورد ګرځي.

**د شفاعت شرطونه:**

دا خبره د یادولو وړ ده چې شفاعت د قیامت په ورځ په دریو شرطونو مشروط دی:

۱- د شفاعت کوونکي لپاره د الله اجازه.

۲- د مشفوع له په هکله د الله رضا او موافقه.

۳- د چا لپاره چې شفاعت کیږي هغه به مسلمان او موحد وي.

قرآنکریم لومړي شرط ته په اشارې سره فرمایي:﴿مَن ذَا الّذِي يَشْفَعُ عِنْدَهُ إلاّ بِإذْنه﴾(البقره ۲۵۵) .

**ژباړه:** څوک به وي چې د هغه له اجازې پرته د هغه په وړاندې د څه سپارښتنه وکړئ؟

او د دوهم شرط په هکله هم فرمایي:﴿وَلَا تَنفَعُ الشَّفَاعَةُ عِندَهُ إِلَّا لِمَنْ أَذِنَ لَهُ﴾السباء ۲۳

ژباړه: د الله تعالی په وړاندې هیڅ سپارښت ګټور نه دی خو یوازې د هغه چا لپاره سپارښت اوریدل کیږي چې الله تعالی ورته اجازه کړې وي.

او همدارنګه فرمایي:﴿وَلَا يَشْفَعُونَ إلاّ لِمَنِ ارْتَضَى وهُم﴾. (انبیاء ۲۸ ).

**ژباړه:** او هغوی یوازې د هغه چا لپاره سپارښتنه کوي چې الله تعالی ترې خوښ وي.

د دریم شرط په هکله: د قرآن کریم او نبوي سنتو نصوص په دې دلالت کوي چې الله تعالی د موحدو مؤمنانو لپاره د شفاعت اجازه ورکوي، د کفر او شرک خاوندان ددې شفاعت څخه نشي برخمن کیدای.

لکه چې الله په دې هکله فرمایي:﴿فَمَا تَنفَعُهُمْ شَفَاعَةُ الشَّافِعِينَ﴾ (مدثر (۴۸).

**ژباړه:** نو د هیچا سپارښتنه ورته ګټه نه رسوي.

همدارنگه رسول الله ﷺ فرمایلي دي: د هر پیغمبر دعا د قبول جوگه وه، اما هر یوه د دوی نه د خپلي دعا په هکله د بیړې نه کار اخستی دی، پرته له ما څخه چې خپله دعا مې د خپل امت لپاره د قیامت لپاره ساتلې ده او دا دعا زما د امت د هر وګړي لپاره چې په خپله ژمنه وفا وکړي او د الله سره شریک ونه نیسي ان شاء الله شامليږي (صحيح مسلم ص: ۱۱۹).

**د قیامت په ورځ د شفاعت ثابتوالی:**

د شریعت نصوصوته په مراجعې سره مومو چې د قیامت په ورځ عمومي شفاعت د اسلام د ستر پیغمبر حضرت محمد ﷺ لپاره دی او د الله تعالی له لوري د اجازه شوي شفاعت په حدودو کې ځاي لري، لکه څنګه چې جزوي شفاعت د پیغمبر ﷺ نه پرته د نورو لپاره هم په اثبات رسیدلی دی.

زیاتو صحیح احادیثو د شفاعت امر په اثبات رسولی دی د هغو له ډلې څخه د جابر رضی الله عنه په روایت حدیث روایت شوی چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي:

(شفاعتی لأهل الکبائرمن امتی) یعنی زما شفاعت زما د امت د لویو ګناهونو خاوندانو ته دی. (رواه ترمذي او ابو داود).

څلورم لوست

# د صحابه کرامو مقام او درجه

صفحه: ۷

وخت: ۴۵ دقیقې (یو درسی ساعت)

دلوست موخې – زده کوونکي باید:

– د صحابه کرامو مقام او درجه وپیژني.

– د صحابه وو د ځانګړتیاوو سره آشنایي حاصل کړي.

– عقیده ولري چې د پیغمبرﷺصحابه هر یو د ستوري حیثیت لري.

## اړینه پوهه

**د صحابه وو تعریف:**

صحابه یا صحابی په لغت کې د اطاعت پر محور ملګرتیا ته ویل کیږي.

صحابی په اصطلاح کې: هغه چا ته ویل کیږي چې پیغمبرﷺ یې لیدلی او په هغه یې ایمان راوړی او په اسلام کې وفات شوی وي.

**د صحابه کرامو مقام:**

د اهل سنت والجماعت په نزد د پیغمبرﷺ د صحابه وو مقام او رتبه او د دوی رښتینوالی یو معلوم او منل شوی کار دی، بناپردې لازمه ده چې د صحابه وو مقام او درجه د قرآن، نبوي احادیثو او د اهل سنت د علما وو په روښنایی کې بیان کړو.

**د صحابه وو مقام د قرآن په رڼا کې:**

الف: الله تعالی فرمایلی دي:﴿لَقَدْ رَضِيَ اللَّهُ عَنِ الْمُؤْمِنِينَ إِذْ يُبَايِعُونَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ فَعَلِمَ مَا فِي قُلُوبِهِمْ فَأَنزَلَ السَّكِينَةَ عَلَيْهِمْ وَأَثَابَهُمْ فَتْحًا قَرِيبًا﴾ (الفتح ۱۸)

**ژباړه:** الله تعالی هغه وخت له مؤمنانو نه خوښ شو چې له ونې لاندې یې له تا سره بیعت کولو د زړونو حال یې الله تعالی ته ښه معلوم وو نو ځکه یې پرې ډاډ راښکته او ډیره نژدې سوبه یې ور په برخه کړه.

الله تعالی په دې آیت کې بیان کړی چې الله تعالی د هغه مؤمنانو څخه چې تر ونې لاندې یې د پیغمبرﷺ سره بیعت وکړ راضي او خوښ دی، ځکه الله تعالی په هغه ایمان او صداقت چې د دوی په زړونو کې پټ او پوهیده، نوځکه یې پر دوی آرامي نازله کړه، نو دلته الله تعالیددې قوم د ایمان په رښتینوالي او صحیح والي چې د ونې لاندې یې د پیغمبرﷺ سره بیعت وکړ ګواهي ورکوي.

ب- ﴿وَمَا لَكُمْ أَلَّا تُنفِقُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَلِلَّهِ مِيرَاثُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ لَا يَسْتَوِي مِنكُم مَّنْ أَنفَقَ مِن قَبْلِ الْفَتْحِ وَقَاتَلَ أُولَئِكَ أَعْظَمُ دَرَجَةً مِّنَ الَّذِينَ أَنفَقُوا مِن بَعْدُ وَقَاتَلُوا وَكُلًّا وَعَدَ اللَّهُ الْحُسْنَى وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴾ (الحديد ١٠ ).

**ژباړه:** او پر تاسې څه دي چې د الله تعالى په لیار کې ما نه لګوئ؟ اسمانونه او ځمکه یوازې هغه ته پاتې دي. ستاسې هغه خلک چې د مکې له فتحې یې وړاندې مال لګولی او جنګیدلي دي او هغه یو انډول نه دي چې وروسته یې مال لګولی او جنګیدلي دي د همدغو خلکو درجه له هغو نه خورا لوړه ده چې لــه فتحــې نــه وروسته یې مال لګولی او جنګیدلي دي الله تعالى له هرې ډلې سره نیکه وعده کړې او الله تعالى ستاسې لــه کړنو ښه خبر دی.

ج- ﴿وَالَّذِينَ تَبَوَّؤُوا الدَّارَ وَالْإِيمَانَ مِن قَبْلِهِمْ يُحِبُّونَ مَنْ هَاجَرَ إِلَيْهِمْ وَلَا يَجِدُونَ فِي صُدُورِهِمْ حَاجَةً مِّمَّا أُوتُوا وَيُؤْثِرُونَ عَلَى أَنفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ وَمَن يُوقَ شُحَّ نَفْسِهِ فَأُوْلَئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ﴾ (الحشر ٩ ).

**ژباړه:** او هغه خلک هم یکې برخه من دي چې د مهاجرینو له راتګ څخه وړاندې یې په مدینه کې ځای نیولی او ایمان یې خپل کړی وو او له هغو خلکو سره مینه کوي چې دوی ته یې هجرت کړی دی او د هغه مال په لور یې په زړونو کې هیڅ هیله نه پیدا کیږي چې مهاجرو ورونو ته یې ورکړای شي پر خپلو ځانونو یې غوره کوي که څه هم په خپله اړمن وي واقعیت همدا دی چې هر څوک له بخیلۍ څخه وژغورل شو نو همـــدوی بریمن دي.

د - ﴿ مُّحَمَّدٌ رَّسُولُ اللَّهِ وَالَّذِينَ مَعَهُ أَشِدَّاء عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَاء بَيْنَهُمْ تَرَاهُمْ رُكَّعًا سُجَّدًا يَبْتَغُونَ فَضْلًا مِّنَ اللَّهِ وَرِضْوَانًا سِيمَاهُمْ فِي وُجُوهِهِم مِّنْ أَثَرِ السُّجُودِ ذَلِكَ مَثَلُهُمْ فِي التَّوْرَاةِ وَمَثَلُهُمْ فِي الْإِنجِيلِ كَزَرْعٍ أَخْرَجَ شَطْأَهُ فَآزَرَهُ فَاسْتَغْلَظَ فَاسْتَوَى عَلَى سُوقِهِ يُعْجِبُ الزُّرَّاعَ لِيَغِيظَ بِهِمُ الْكُفَّارَ وَعَدَ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ مِنْهُم مَّغْفِرَةً وَأَجْرًا عَظِيمًا﴾ الفتح ٢٩.

**ژباړه:** محمد د الله رسول دی او هغه کسان چې ور سره دي پر کفارو ډیر سخت او په خپلو مینځونو کــې ډیر مهربان دي ته به یې همیش رکوع او سجده کوونکي وینې چې د الله تعالى د مهربانیو او خوښــیو د تــر لاسه کولو په هڅو کې به وي په مخونو کې د سجدې نښې ښکاري په همدې توګه یې په تورات او انجیــل کې هم یادونه شوې ده دوی هغه کښت ته ورته دي چې په خپل ځنګ کې نورې ډیرې ځانګې راپورته بیــا هغه هم پیاوړې او هومره یې کلکې کړي چې بالاخره پر خپلو ډډونو ودریږي بزګران خوښــوي. تــر څــو کافران د دوي له پیاوړتیا څخه خپل په خپله وسوزي الله تعالى له هغو کسانو سره چې ایمان یــې راوړی او نیکې کړنې یې خپلې کړي د ښښنې او لوی اجر وعده کړې ده.

د ذکر شوو آیتونو څخه روښانه شوه چې د رسول الله ﷺ صحابه د خاص مقام او مرتبې خاوندان دي.

**د صحابه وو مقام او مرتبه د احاديثو په رڼا کې:**

**الف: له ابوسعيد الخدرى رضى الله عنه څخه روايت دى چې نبى کريمﷺ فرمايلي دي: لاتسُبّوا اصحابى فلوان احدکم انفق مثل احد ذهبا ما بلغ مد[1] احدهم ولانصيفه ( متفق عليه).**

**ژباړه: زما د اصحابو په حق کې بدې کنځلې مه کوئ که چيرې يو له تاسو د احد د غره په کچه طلا د الله په لارکې ولګوي، بياهم نشي کولای د صحابه وو د يو يا دوه موټې او ان ترنيم د هغوی سره برابري وکولاي شي.**

**ب- د عمر رضى الله عنه څخه روايت دى رسول اللهﷺوفرمايل:**(اکرموا اصحابى فانهم خيارکم ثم الذين يلونهم ثم الذين يلونهم ).

**ژباړه: زماد صحابه وو (ملګرو) احترام کوئ ځکه هغوی ستاسو غوره کسان دي بيا هغه کسان غوره دي چې په دوی پسې دي (تابعين) بياهغه کسان چې په هغوی پسې دي ( تبع تابعين).**

**ج- عمران بن حصين روايت کوي چې رسول اللهﷺ وفرمايل:** (خيرامتى قرنى ثم الذين يلونهم ثم الذين يلونهم) .

**ژباړه: زما د امت غوره کسان هغه دي چې زما په زمانه کې ژوند کوي، بيا ورپسې کسان چې په دوی پسې راځي (تابعين) بيا هغه کسان چې په هغو پسې راځي ( تبع تابعين).**

**د- د جابر رضى الله عنه څخه روايت دى وايي: رسول اللهﷺ وفرمايل:**( لاتمسُّ النارُ مسلماً رآنى اورآ من رآنى) . رواه الترمذي.

**ژباړه: هغه مسلمان ته اورنه رسيږي کوم چې زه ليدلی يم (صحابي) او نه هغه مسلمان ته چې هغه څوک يې ليدلی وي چې هغه زه ليدلی وم (تابعی).**

و- (لا يدْخُلُ النَّارَ –إن شاءالله- من أصحاب الشَجَرَةِ أحدٌ الذين بايَعُوا تَحْتَها).

**ژباړه: دوزخ ته نه داخليږي ( ان شاءالله) دونې د ملګرو څخه هيڅ هغه څوک چې تر هغې لاندې يې بيعت کړی وي.**

**1مد: يوه پيمانه ده په عراق کې د ۱۸ ليترو ( يو چارک) يا ۷۵۰ ګرامو سره برابره ده (فرهنګ عميد)**

پنځم او شپږم لوست

# یمین (قسم) او ډولونه یې

صفحه: ۹-۱۱

وخت: یو درسي ساعت

دلوست موخې: زده کوونکي باید:

- د قسم معنا او مفهوم وپیژني.
- د قسم له ډولونو سره آشنایي حاصله کړي.
- د هر قسم شرعي حکم بیان کړی شي.

**اړینه پوهه**

**د یمین تعریف:**

یمین عربي کلمه ده چې جمع یې أیمان یا أیمن راځي، په لغت کې په څو معنا وو سره راغلی دی لکه قوت، برکت، ښی لاس او ښی لوری او مقابله نقطه یې (یسار) دی.

یمین په اصطلاح کې: په ځانګړې توګه د یو لوی او معظم شي په ذکر کولو سره د یو حکم تاکید دی. د ذکر شوي تعریف څخه معلومیږي چې یمین په قسم پورې ځانګړی دی.

**د یمین (قسم) ډولونه:**

۱- لغو قسم

۲- غموس قسم

۳- منعقده قسم

**لغوه قسم او حکم یې:**

لغوه قسم هغه قسم دی چې پرته له نیت او قصد څخه وي لکه څوک چې ووایي: په الله قسم چې باید و خورې یا وچښې او داسې نور چې د قسم کولو قصد نلري.

دا ډول قسم نه منعقد کیږي او د پوښتنې موجب نه ګرځي او کفاره هم نلري.

الله تعالی فرمایي: ﴿لَّایُؤَاخِذُکُمُ اللهُ بِاللَّغوِ فِی أیمَانِکُم، وَلَکِن یُؤَاخِذُکُم بِمَا کَسَبَت قُلُوبُکُم﴾ (بقره: ۲۲۵)

**ژباړه:** الله تعالی تاسې په بابېزه قسمونو نه نیسي. خو تاسې په هغو قسمونو چې په زړونو کې مو ورته هوډ کړی وي نیسي.

همدارنگه الله تعالی فرمایي: ﴿لاَيُؤَاخِذُكُمُ اللهُ بِاللَّغوِ فِی أيمَانِكُم، وَلَكِن يُؤَاخِذُكُم بِمَا عَقَّدتُمُ الأيمَان﴾ (مائده: ٨٩)
**ژباړه:** الله تعالی تاسې په خپلو بابیزه قسمونو سره نه نیسي مگر په هغو قسمونو مو نیسي چې له زړه مو خوړلی وي.
د بي بي عائشې رضی الله عنها څخه روایت دی چې ((لاَيُؤَاخِذُكُمُ اللهُ بِاللَّغوِ)) آیت د داسې قسمونو په هکله نازل شوې لکه: (الله، بالله) بخاري.
غموس قسم: دروغجن قسم دی چې په هغه سره حقوق ترپښنو لاندې کیږي یا هغه قسم دی چې په هغه سره د فسق یا خیانت قصد وکړي. او غموس غوټه کیدلو ته وایي، ځکه خاوند یې په گناه کې ننوځي بالآخره پــه دوزخ کې غوټه کیږي.
دا قسم د لویو گناهونو له ډلې څخه دی او کفاره نلري، ځکه الله تعالی فرمایي:﴿وَلَكِنْ يُؤَاخِذُكُمْ بِمَا عَقَّدْتُمْ الأَيْمَانَ﴾ (مائده: ٨٩)
**ژباړه:** مگر په هغو قسمونو مو نیسي چې له زړه مو خوړلی وي.
دا قسم نه منعقد کیږي، ځکه منعقده قسم هغه دی چې په هغه کې د کفارې ورکول ممکن وي. او په غموس قسم کې په قسم سره وفا هیڅ امکان نلري. الله تعالی فرمایي:﴿وَلاَ تَتَّخِذُوا أيمَانَكُم دَخَلاً بَينَكُم فَتَزِلَّ قَدَمٌ بَعدَ ثُبُوتِهَا وَ تَذُوقُوا السُّوءَ بِمَا صَدَدتُم عَن سَبِيلِ اللهِ وَلَكُم عَذَابٌ عَظِيْم﴾ (نحل: ٩۴)
**ژباړه:** او ای مؤمنانو! قسمونو مو په خپلو مینځو کې د غولولو وسیله مه گرځوئ هسې نه چې قدم مــو لــه ټینگیدلو وروسته ښوئیږي او له دې کبله چې د الله تعالی له لیارې نه مو خلک منع کړي دي ناوړه نتیجه یې وڅکئ. او په اخرت کې مو لوی عذاب په برخه دی.
طبري رحمه الله لیکي: وَلاَ تَتَّخِذُوا أيمَانَكُم دَخَلاً بَينَكُم، آیت معنی دا ده چې خپل قسمونه د دوکې او خیانت وسیله ونه گرځوي مثلاً دچاسره یې تړون لاس لیک کړی او قسم یادوي چې په دې تړون به وفا کوم څو هغه ډاډمن شي اما په زړه کې یې د خیانت قصد لري. (تفسیر طبری ۱۴/۱٦٦)
د عبدالله بن عمرو رضی الله عنه څخه روایت دی چې پیغمبرﷺ وفرمایل: (الکبائر: الإشراك بالله، و عقـوق الوالدین، و قتل النفس، والیمـین الغمـوس)النسائي: یعنی لویې گناوې عبارت دي له الله سره شریک نیول، د مور او پلار عاق (نافرمانی) او د بې گناه نفس وژل او غموس قسم. له ابو هریره رضی الله عنه څخه روایـــت دی چې پیغمبرﷺوفرمایل: (خمس لیس لهن کفارة: الشرک بالله عزوجل، و قتل النفس بغیر حق، و نهـــب مومن او الفرار من الزحف او یمین صابرة یقتطع بها مالا بغیر حق ( ابن ماجة)
**ژباړه:**
پنځه گناهونه کفاره نلري: د الله سره شریک نیول، په نا حقه د چا وژل، د مؤمن مال چور کول، د جنگ له میدان څخه تیښته او غموس قسم چې د هغه په وسیله ناحق مال واخستل شي.

**منعقده قسم او د هغه حکم:**

**منعقده قسم هغه قسم دی چې يو تن د يوکار د انجامولو يا پرينښودلو د تاکيد لپاره ( اوس يا راتلونکې کې، نه په تيره زمانه) په قصد سره قسم وکړي او په هغه ښه مصمم وي.**

**نوکه چيرې يې په خپل قسم وفاوکړه گناه پرې نشته اما که وفايې ونکړه بايد کفاره ورکړي، ځکه الله تعالی فرمايلي دي.**

﴿وَلَكِن يُؤَاخِذُكُم بِمَا كَسَبَت قُلُوبُكُم﴾ (بقره: ۲۲۵)

**ژباړه:** خو تاسې په هغو قسمونو چې په زړونو کې مو ورته هوډ کړی وي نيسي.

همدارنگه الله تعالی فرمايي: ﴿وَلَكِنْ يُؤَاخِذُكُمْ بِمَا عَقَّدْتُمْ الأَيْمَانَ﴾ (مائده: ۸۹)

**ژباړه:** مگر په هغو قسمونو مو نيسي چې له زړه مو خوړلی وي.

که څوک خپل قسم مات کړي نو کفاره يې په دې ډول ده:

۱– د لسو مسکينانو مړول د متوسطې غذا په واسطه لکه خپل کورته چې ورکول کيږي.

۲– يالسو مسکينانوته جامې ورکول.

۳– يا د يو غلام آزادول.

اوکه له دې شيانو څخه يو هم نشي اداء کولای هغه بايد درې ورځې روژه ونيسي.

اوکه په يادشوو شيانو برلاسی وي هغه د خپل قسم د کفارې لپاره روژه نشي نيولای. يعنې ورته روانده.

الله تعالی فرمايي:﴿ لاَيُؤَاخِذُكُمْ اللَّهُ بِاللَّغْوِ فِي أَيْمَانِكُمْ وَلَكِنْ يُؤَاخِذُكُمْ بِمَا عَقَّدْتُمْ الأَيْمَانَ فَكَفَّارَتُهُ إِطْعَامُ عَشَرَةِ مَسَاكِينَ مِنْ أَوْسَطِ مَا تُطْعِمُونَ أَهْلِيكُمْ أَوْ كِسْوَتُهُمْ أَوْ تَحْرِيرُ رَقَبَةٍ فَمَنْ لَمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلاَثَةِ أَيَّامٍ ذَلِكَ كَفَّارَةُ أَيْمَانِكُمْ إِذَا حَلَفْتُمْ﴾ (مائده: ۸۹)

**ژباړه:** الله تعالی تاسې په خپلو بابيزه قسمونو سره نه نيسي مگر په هغو قسمونو مو نيسي چې له زړه مو خوړلی وي. د داسې قسمونو کفاره لسوښ، مسکينانو ته هغه برابر خوراک ورکول دي چې تاسې يې خپلو کوچنيانو ته ورکوئ! يا هغوی ته جامې ورکلو او د يوه غلام ازادول دي او هر څوک چې د دې وس ونه لري نو پـــر هغه درې ورځې روژه ده. دا ستاسو د خوړلو قسمونو کفاره ده او بايد قسمونه مو وساتئ په همدې توگه الله تعالی تاسې ته خپل ايتونه بيانوي تر څو يې مننه او شکريه وکړئ.

اووم لوست

# شرک

صفحه:۱۳

وخت: یو درسی ساعت.

د لوست موخې: زده کوونکي باید:

- د شرک مفهوم او معنی وپېژني.
- وپوهيږي چې شرک څه ډول عمل دی
- هغه عملونه چې شرک ګڼل کیږي هغه بیان کړای شي.
- عقیده ولري چې په آخرت کې مشرک قطعاً نه ښنبل کیږي.

**اړینه پوهه**

مخکې له دې چې د شرک ډولونه بیان کړو، لومړی لازم دي د شرک معنا او مفهوم، د هغه ضــررونه او د هغه سره د اسلام مبارزه وپیژنو:

**د شرک تعریف:**

شرک عربي کلمه او یوه قرآنی اصطلاح ده چې ډېره د الله په خبروکې کارول شوې ده، په لغت کې په یوشي کې د برخې اخستلو یا شریک کیدلو په معنا سره دی. او شریک ته ځکه شریک ویل کیږي چې په یوه شـــي کې یې برخه اخستې ده.

او په اصطلاح کې شرک د الله په ربوبیت یعنې د الله تعالی ذات، افعالو اوصفتونو کې یو څوک یا کوم شـــي شریک ګڼل یا د الله په الوهیت یعنی دده په معبودیت یا په دواړوکې څوک شریک ګڼلوته شرک ویل کیږي.

**د شرک سره د اسلام مبارزه:**

ددې لپاره چې انسان د هر ذلت په وړاندې د شرک سره د مبارزې لپاره راپورته شي او انسان ته د هغه نـــه نجات ورکړي. او خپل عبادت، پیروي او عاجزي یوازې د هغه ذات لپاره وګرځوي چې هغه همیشه دی او هیڅ تغییر او تبدیل پکې لار نشي موندلای.

اوله بلې خوا اسلام چې په کومه کچه توحید ته ارزښت ورکړی په همغه کچه د شرک څخه حساسیت ښیي او هر کړه وړه چې په هغه کې شرک شتون لري او یا د شرک احتمال پکې وي او شرک ته مفضي کیـــږي هغه نه مني. او ردوي یې او د هغه پرضد مبارزه کوي، قرآنکریم شرک لویه او نه ښنونکې ګنـــاه ګڼلـــې او فرمایي:﴿إِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ﴾ - لقمان: ۱۳

همدارنګه الله تعالی فرمایي: ﴿إِنَّ اللّهَ لاَ يَغْفِرُ أَن يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَلِكَ لِمَن يَشَاء وَمَن يُشْرِكْ بِاللّهِ فَقَدِ افْتَرَى إِثْمًا عَظِيمًا﴾النساء (۴۸).

**ژباړه:** بې شکه الله تعالى يوازې شرک نه بښي او له دې پرته چاته يې چې خوښه شي هرڅه بښي او څــوک چې له الله تعالى سره شريک ونيسي نو په رښتيا چې ډېره ستره ګناه يې له ځانه جوړه کړه.
اسلام د توحيد خالصې عقيدې د ساتلو لپاره او دا چې ربوبيت او الوهيت د نړۍ د پيدا کوونکي پاک ذات کې منحصر پاتې شي او عبادت او لمانځنه يوازې هغه ته ثابت د شرک او د شرک له ډولونو څخه پــاک او خالي شي، د هر ډول وهمونو او خرافاتو سره د جنګ اعلان کړی او ټولې هغه دروازې يې تړلې دي چــې د هغونه د شرک بوی راځي. د بيلګې په توګه رسول اکرمﷺ د کاهنانو (غيب ويونکو) او د هغود ويناوو له تصديق کولو څخه سخته منع کړې ده او فرمايي: ( مَن أَتَى كَاهِناً فَصَدَّقَهُ بِمَا يَقُولُ فَقَد كَفَرَ بِمَا أُنزِلَ عَلَى مُحَمَّد).
**ژباړه:** څوک چې کاهن ( غيب ويونکي) ته راشي نو د هغه ويناوې تصديق کړي نو په هغه څه کافر شو کوم چې محمدﷺ راوړي دي.
همدارنګه اسلام د پيغمبر، امامانو او نيکانو په تعظيم او احترام کې د غلواو افراط څخه شديده منع کړيــده لکه څنګه چې اهل کتاب ( يهودو او نصارا وو) د حضرت عزيراو حضرت عيسى عليهم السلام په هکلــه د غلو مرتکب شوي نو الله تعالى مخاطب ګرځولي او فرمايي:
﴿قُلْ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ لاَ تَغْلُواْ فِي دِينِكُمْ غَيْرَ الْحَقِّ﴾– مائده ۷۷.
**ژباړه:** (اى محمده!) ورته ووايه چې اى د کتاب خاوندانو! په دين کې مو په ناروا له اندازې وړاندې مه ځئ.
همدارنګه رسول اللهﷺ فرمايلي دي:: إِيَّا كُم وَالغُلو فَإِنَّمَا أَهَلَكَ مَن كَانَ قَبلَكُم الغُلوَ – مسند احمد– سنن ترمذى.
**ژباړه:** د غلوې افراط څخه ځان وژغورئ، ځکه د تاسونه مخکې امتونه غلوې او افراط د هلاکت سره مــخ کړل.
همدارنګه امام بخاري د حضرت عبدالله بن عباس رضى الله عنهما څخه روايت کوي چې د آدم عليه السلام له زمانې څخه د نوح عليه السلام تر پيغمبرۍ پورې د نړۍ ټول خلک موحد وو او د اول ځل لپاره د نــوح عليه السلام په زمانه کې شرک رامنځ ته شو او علت يې دا ور چې د نوح عليه السلام په قــوم کــې د ود، سواع، يغوث، يعوق او نسر په نومونو څه صالح او نيک وګړي وو چې د معنوى اعتبار او نفوذ څخه زيــات برخمن وو او کله چې دوى وفات شول، پيروانو يې چې ددوى سره زيات محبت او علاقه درلوده د هغــوى تمثالونه او شکلونه جوړ کړل او د يادګار په توګه يې په خپلو مرکزونو او مجلسونو کې نصب کــړل څــو ددوى د تصويرونو په ليدلو سره دهغوى ياد ددوى په خاطرو کې ژوندى پاتې شي او په زړونو کې يې د الله د عبادت شوق زيات شي.
اما له څونسلونو وروسته، اصلي هدف ورڅخه هيرشو او د ابليس په لمسولو سره هريوله هغو نيکانو څخه په مستقل خداى بدل او د نړۍ پيدا کوونکي ذات سره په عبادت او لمانځنه ونيول شول.
همدارنګه کنفويسوش، زرتشت، بودا، مهاويرا او بالآخره حضرت عيسى عليه السلام هيڅ يــوه د الوهيــت دعوه نده کړې او ځانونه يې د يو معلم، يامرشد او يا پيغمبر څخه لوړ نه ګڼل، ددوى له مرګه وروسته د غلو او افراط له کبله پيروانو يې دوى د الوهيت او خداييتوب مقام ته ورسول، له همدې وجې اسلام دا دروازه د

ابد لپاره وتړله او د الوهيت او عبوديت د مقام ترمنځ يې جدايي راوستله له همدې کبلــه رســول اللهﷺفرمــايلي دي: (لاتُطرُونى كما أطرت النصارى إبن مريم إنما أنا عبدالله ورسوله).

**ژباړه:** زما په ستاينه کې له افراط څخه کار مه اخلئ لکه څنګه چې نصاراوو د مريم د زوی په هکله د افراط څخه کار اخستلو زه يوازې د الله تعالی بنده او پيغمبريم.

دا چې د انبياوو، اولياوو او نيکانو په تعظيم کې غلواو افراط ددوی له مــرګ وروســته د دوی د قبرونــو پرسرونو رامنځ ته شوی، نو اسلام ددې کار د مخنيوی لپاره د قبرونو پر سر د لمونځ او عبادت کولو څخه منع راوړې ده لکه چې رسول اللهﷺ فرمايلي دي:(لَعَنَ اللَّهُ الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى اتَّخَذُوا قُبُورَ أَنْبِيَائِهِمْ مَسْجِدًا).

**ژباړه:** د الله لعنت دې پريهودو او نصاراوو وي چې دوی د خپلو پيغمبرانو له قبرونو څخه عبادتخانې جوړې کړې دي. همدارنګه رسول اللهﷺ د صالحينو د قبرونو تعظيم له مخنيوی څخه د قبرونو سپينول او د هغوی پر سر کيناستل او د هغو پر سر له ګونبزو جوړولو څخه په مطلقه توګه منع راوړې ده.

د حنفي مذهب زياتو علماوو لکه امام محمود آلوسي، مولانا شبير احمد عثماني او علامه ظفراحمد عثمــاني ددې حديث په استناد د قبرونو له سپينولو او په هغوی له آبادۍ جوړولو منع کړې ده او دا عمل يې د شرک لپاره وسيله ګڼلې ده.

**دشرک ضرورنه:**

شرک ډير زيات ضرورنه لري چې ځنې ورڅخه دادي:

۱– شرک نه بښونکې ګناه ده. لکه چې الله تعالی فرمايي: ﴿إِنَّ اللّهَ لاَ يَغْفِرُ أَن يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَلِكَ لِمَن يَشَاءُ وَمَن يُشْرِكْ بِاللّهِ فَقَدِ افْتَرَى إِثْمًا عَظِيمًا﴾النساء (۴۸).

**ژباړه:** بې شکه الله تعالی يوازې شرک نه بښي او له دې پرته چاته يې چې خوښه شي هرڅه بښي او څــوک چې له الله تعالی سره شريک ونيسي نو په رښتيا چې ډيره ستره ګناه يې له ځانه جوړه کړه.

**۲– د عمل د نابودۍ لامل ګرځي:**

د شرک په واسطه د انسان ټول نيک عملونه بربادېږي. او دالله سره شرک کول د زهرو خوړلو په معنــا دي چې د ټول عمر زحمتونه له منځه وړي لکــه چــې الله تعــالی فرمــايي:﴿وَلَوْ أَشْرَكُواْ لَحَبِطَ عَنْهُم مَّا كَانُواْ يَعْمَلُونَ﴾انعام (۸۸).

ژباړه: او بالفرض که دغو غوره خلکو هم شرک کړی وای نو ټولې کړنې به يې بابيزه شوې وای.

**۳– شرک پريشاني او تشويش رامنځ ته کوي:** موحد انسان يوازې د الله د راضي کولو په فکر کــې دی او ديته هيڅ توجه او پاملرنه نه کوي چې خلک يا ډلې څه غواړي او په پايله کې د ځانګړې آرامۍ او ډاډينــې څخه برخمن کيږي.

ددې مطلب په اړه دوه آيتونه راوړو:

﴿أَأَرْبَابٌ مُّتَفَرِّقُونَ خَيْرٌ أَمِ اللّهُ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ﴾يوسف (۳۹).

**ژباړه:** خواره واره باداران ښه دي او که يو زوره ور الله تعالی ؟

يعنى كله چې انسان د يو الله تعالى د راضي كولو په فكر كې وي، آرامي حس كوي؟ او كه د څو خدايانو د راضي كولو په فكر كې وې هغوی هم چې مختلف طبيعتونه او خصلتونه لري؟
ب – ﴿ضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا رَّجُلًا فِيهِ شُرَكَاء مُتَشَاكِسُونَ وَرَجُلًا سَلَمًا لِّرَجُلٍ هَلْ يَسْتَوِيَانِ مَثَلًا ﴾. **الزمر: ٢٩.**
**ژباړه:** الله تعالى يو مثال بيانوي يو سړی دی چې څو بد خويه او په خپلو منځونو کې وران خلک پرې شريكان دي او بل سړی دی چې يوازې د يو تن په واک كې دی ايا د دواړو حال يو شان دی؟
**٤– په شخصيت كې تزلزل:**
قرآنکريم فرمايي:﴿وَمَن يُشْرِكْ بِاللَّهِ فَكَأَنَّمَا خَرَّ مِنَ السَّمَاء فَتَخْطَفُهُ الطَّيْرُ أَوْ تَهْوِي بِهِ الرِّيحُ فِي مَكَانٍ سَحِيقٍ﴾حج (٣١).
**ژباړه:** او څوک چې له الله تعالى سره بل څه برابر كړي نو داسې يې وګڼه لكه چې له اسمان نه راختنا او مارغان يې سره وتښتوي او يا يې باد په يوه لرې او ژور ځای کې ور ګوزار كړي.
**٥– په ټولنه كې اختلاف راولي:** په توحيدي ټولنه کې يو حكم اويو قانون شتون لري هغه هم د الله حكم او قانون، اما په شركي ټولنه كې د يو قانون په ځای متفاوتې مقررې او كړنلارې رامنځ ته كيږي او هر څوک د خپلې رايې او فكر چې منځ ته يې راوړي تاييد كوي لكه چې قرآن كريم فرمايي: ﴿إِنَّا أَطَعْنَا سَادَتَنَا وَكُبَرَاءنَا فَأَضَلُّونَا السَّبِيلَا﴾احزاب (٦٧).
**ژباړه:**موږ د خپلو سردارانو او مشرانو پسې تللي وو خو هغوی موږ بې لیارې كړو.
همدارنګه فرمايي:﴿ كُلُّ حِزْبٍ بِمَا لَدَيْهِمْ فَرِحُونَ﴾ الروم (٣٢).
**ژباړه:** او هره ډله چې ورسره دي، په همغه خوشحاله ده.
ټولنيز جنګونه او اختلافونه د شرک له آثارو څخه دي لكه چې قرآن وايي:﴿وَلَا تَكُونُوا مِنَ الْمُشْرِكِينَ ، مِنَ الَّذِينَ فَرَّقُوا دِينَهُمْ وَكَانُوا شِيَعًا ﴾ (الروم ٣١. ٣٢)
**ژباړه:** او له مشركانو څخه مه كيږئ. او له هغو كسانو مه كيږئ چې خپل دين يې ټوټه، ټوټه كړی دی، په ډلو ويشل شوي.
**٦– شرک د انسان د ذلت او سپکتيا لامل ګرځي:**
د الله تعالى سره شريک نيول په حقيقت كې د انساني كرامت توهين او تذيل ګڼل كيږی، ځكه الله تعالى انسان ته د علم په ترڅ كې د ځمكې او اسمان ټول موجودات مسخر كړي او دده په خدمت كې يې لګولي دي. اما انسان سره ددې فضيلته خپل قدر نه پيژني، ددې كايناتو عناصر او اجزاوې ( چې الله تعالى دده لپاره مسخر كړې) د ځان لپاره اله او معبود ګرځوي او هغه ته بندګی او عاجزي كوي او په دې توګه خپل حيثيت راټيټوي الله تعالى فرمايي:
﴿وَمِنْ آيَاتِهِ اللَّيْلُ وَالنَّهَارُ وَالشَّمْسُ وَالْقَمَرُ لَا تَسْجُدُوا لِلشَّمْسِ وَلَا لِلْقَمَرِ وَاسْجُدُوا لِلَّهِ الَّذِي خَلَقَهُنَّ إِنْ كُنْتُمْ إِيَّاهُ تَعْبُدُونَ﴾ فصلت: ٣٧.
**ژباړه:** او د الله تعالى له نښو څخه شپه، ورځ، لمر او سپوږمی دي لمر او سپوږمی ته سجده مه كوئ. بلكې هغه الله تعالى ته سجده وكړئ چې دوی يې پيدا كړي دي كه په ربښتيا يوازې هغه ته عبادت كوئ

**٧- شرک د خرافاتو او باطلو ځاله ده:**

شرک لوی ظلم دی الله شرک ته لوی ظلم ویلی او فرمایي: ﴿إِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ ﴾ لقمان: ۱۳ آیت

**ژباړه:** یقیناً شرک ډیر لوی ظلم دي.

مشرک د حقیقت پر خلاف یوشي په خداییتوب نیولی او د الله نه پرته بل څه ته رب وایي، نو دا ظلم دی چې د الله په وړاندې یې کړی ځکه ځان یې د داسې مخلوق بنده گرځولی چې هغه دده په شان بنده او مخلـــوق دی، حال دا چې الله تعالی هغه آزاد او خپلواک پیدا کړی دی، همدارنگه دده دا عمل پرنورو هم ظلـــم دی ځکه هغه ته په هغه څه قایل شوی چې حق یې نه دی.

**٨- شرک د ویرې او نه ډاډیني مصدر دی:**

مشرک چې سم کار نه دی غوره کړی نو عقل یې هم بشپړ او کامل اطمینان نه پیدا کـــوي نـــو دمختلفـــو اړخونو څخه په ویره او وهمونو کې وي او الله دا مطلب داســـې بیـــانوي: ﴿سَنُلْقِي فِي قُلُوبِ الَّذِينَ كَفَرُوا الرُّعْبَ بِمَا أَشْرَكُوا بِاللَّهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهِ سُلْطَانًا﴾آل عمران: ۱۵۱

**ژباړه**

هغه وخت ډیرژر راتلونکی دی چې موږ د حق نه منونکو په زړونو ویره وغور ځوو، ځکه چې هغوی لـــه الله جلاجلاله په خدایي کې هغه څه شریک انگیرلی دی چې دهغو په برخه والی کې الله جلاجلاله کوم سندنه وی نازل کړی

**٩- شرک د گټورو کارونو د وروسته والي سبب دی:**

کله چې څوک د الله نه پرته د نورو خدایانو عبادت کوي او په دې گمان وي چې دوی به د الله په وړانـــدې زما شفاعت وکړي نو داسې کسان د ډیروگناهونو او جرمونو مرتکب گرځي په دې هکله الله تعالی فرمایي: ﴿وَيَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ مَا لَا يَضُرُّهُمْ وَلَا يَنْفَعُهُمْ وَيَقُولُونَ هَؤُلَاءِ شُفَعَاؤُنَا عِنْدَ اللَّهِ﴾یونس: ۱۸

**ژباړه:** هغوی له الله تعالی نه پرته د هغه څه عبادت کوي چې نه ورته تاوان رسولای شي، او نه گټه او لا وایي چې: زموږ دغه خدایان به د الله تعالی په وړاندې زموږ سپاربنتنه کوي.

**ځنې شرکي عملونه:**

١- په داسې عقیده زیارت ته تلل چې د قبر خاوند زما پرحال خبر دی او زما حاجت رفع کوي.

٢- هر ډول مالي او بدني عبادت چې د شخص لپاره د عقیدې په توگه رامنځ ته شي.

٣- شخص ته د هر ډول غیبي علم نسبت کول.

۴- هره حلاله چې پرته د الله له نوم څخه وشي.

۵- هر ډول نذر چې یو شخص ته د نږدیوالی په موخه د الله نه پرته ومنل شي.

٦- د اعتقاد او احترام درلودلو سره د الله نه پرته قسم یادول.

٧- د شفا په هیله د غوټو او مریو او داسې نورو شیانو په غاړه کې اچول.

همدارنگه کوډې، کهانت او فال هم د شرکیاتو څخه گڼل شوي او څوک چې عقیده او باور پرې لري هغوی مشرک دي ځکه په سحر او کوډوکې د پیریانو او شیطانانو څخه مرسته غوښتل کیږي.

اتم لوست

# دشرک ډولونه

صفحه :۱۵

وخت: یو درسی ساعت

د لوست موخې– زده کوونکي باید:

- دشرک ډولونه سم وپیژني.
- د شرک د ډولونو تعریف وکولای شي.
- خفي شرک بیان کړی شي.
- باور ولري چې شرک لوی ظلم دی.

**اړینه پوهه**

**وړوکی شرک:**

وړوکی شرک ریا د هغې گناه څخه عبارت دی چې د لوی شرک کچې ته نه وي رسیدلی مثلاً که چیرې څوک په شرک چې په هغه یې همیشوالی کړی وي د توبې نه مخکې مړشي دا ویره ده چې په شرک مړشوی وي.

ځنو علماوو شرک پردرې ډوله کړی دی:

۱– لوی شرک چې اسلام نفی کوي یعنی د لوی شرک خاوند له دین څخه وځي او ټول عملونه یې ضایع کیږي.

۲– وړوکی شرک چې په لویو گناهونو کې شمیرل کیږي.

۳– خفي او پټ شرک یوازې هغه عمل باطلوي چې شرک پکې واقع شوی وي.

اصلا شرک په دوه ډوله دی: لوی شرک او وړوکی شرک:

**لوی شرک:** د غیر الله عبادت کول، په ربوبیت او الوهیت کې بل څوک شریک کول، او یا د الله سره غیر الله برابرولوته لوی شرک ویل کیږي.

اولوی شرک عبارت له هغې گناه څخه دی چې که چیرې انسان په هغې پرته له توبې مړشي په هیڅ صورت نه بښل کیږي لکه چې الله تعالی فرمایي:﴿إِنَّ اللّهَ لاَ يَغْفِرُ أَن يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَلِكَ لِمَن يَشَاء﴾ نسأ: ۱۱٦.

**ژباړه:** الله تعالی هر گز دا نه ښښي چې شریک ور سره ونیول شي او پرته له شرکه چاته یې چې خوښه شي هر څه ښښي.

همدارنگه الله تعالی فرمایي: ﴿إِنَّهُ مَن يُشْرِكْ بِاللّهِ فَقَدْ حَرَّمَ اللّهُ عَلَيهِ الْجَنَّةَ وَمَأْوَاهُ النَّارُ وَمَا لِلظَّالِمِينَ مِنْ أَنصَارٍ﴾ المائده: ۷۲.

**ژباړه:** او څوک چې له الله تعالی سره بل څه شریک کړی نو الله پاک پرې جنت حرام کړی او ورتگ به یې اور ته وي او د ظالمانو لپاره هیڅ ملاتړ نشته.

**نهم لوست**

# رياء

صفحه:۱۷

وخت: يو درسی ساعت

د لوست موخې: زده کوونکي بايد:

- د شرعي ريا د حکم په هکله معلومات لاس ته راوړي.
- داچې رياڅه ښوونيز ضررونه لري، بيان يې کړی شي.
- باور ولري چې رياء وړوکی شرک دی.

**اړينه پوهه**

**د رياء معنا او مفهوم:**

رياء په اصل کې له (رويت) څخه اخستل شوې ده او په نيکۍ کولو ځان ښکاره کول، دوه مخی او منافقت او بل ته د ښودلو لپاره د کار تر سره کولو ته ويل کيږي. او په اصطلاح کې له دې څخه عبـــارت ده چـــې انسان وغواړي د خپلو نيکو عملونو په وړاندې کولو د خلکو په زړونو کې مقام او رتبه پيدا کړي. که کـــوم نفر د خلکو په مخکې نيک کارونه په خوشحالۍ او بيړې سره کوي اما په تنهايی کې سست او ټنبل وي يا که څوک دده ستاينه کوي نو دی

زيار او تلاش کوي او که څوک يې بد وايي نو بيا کم کار کوي، نو معلوميږي چې دا شخص ريا کـــار دی.

الله تعالی د منافقو او ريا کارانو ځانګړتياوې داسې بيـــانوي ﴿ إِنَّ الْمُنَافِقِينَ يُخَادِعُونَ اللّهَ وَهُوَ خَادِعُهُمْ وَإِذَا قَامُواْ إِلَى الصَّلاَةِ قَامُواْ كُسَالَى يُرَآؤُونَ النَّاسَ وَلاَ يَذْكُرُونَ اللّهَ إِلاَّ قَلِيلاً﴾ نساء: ۱۴۲ .

**ژباړه:** بې شکه چې منافقانو له الله سره د ټګۍ معامله راخيستې او الله تعالی هم هغوی ته د ټګۍ سزا ورکوي او چې کله له لمانځه نه پورته کيږي نو سست او تمبل پورته کيږي خلکوته ځانونه ښايي، الله پاک ډير لـــږ يادوي.

رياکاري د منافقانو د صفتونو جزء ده او مسلمان د امکان تر سرحده بايد له ريا ځان وســـاتي او خپـــل زړه اونيت د الله لپاره هميشه خالص وګرځوي. پيغمبرﷺ فرمـــايلی دي: إِنَّ اللهَ لاَ يَنظُرُإِلـی أجسَـادِكُم وَلاَإِلـی صُوَرِكُم، وَلَكِن ينظرإِلی قُلُوبِكُم (مسلم).

**ژباړه:** الله تعالی ستاسو بدنونو او ستاسو صورتونوته نه ګوري بلکې ستاسو زړونو او عملونه ته ګوري.

**رياء وړوکي شرک دی:**

**مسلمان رياء نه کوي، ځکه ريا د الله تعالی سره شريک نيول دي، پيغمبرﷺ فرمايلي:** إنَّ أَخْـوَفَ مـا أتخـوَّف على أمتي الإشراك بالله، أما إني لستُ أقول: يعبدون شمسًا و لا قمرًا و لا وَثَنًا، ولكن أعمالا لغير الله و شهوة خفية ) ابنماجه] .

**ژباړه: زما ترټولو ډيره ويره د خپل امت په هکله تنها د الله تعالی سره شريک نيول دي، زما منظور دا نه دی چې دوی به لمرياسپوږمۍ او يا بت ته سجده وکړي، بلکې دوی به د الله نه پرته د نورو لپاره عملونه او پټ شهوت او ميلان کوي.**

**او هم يې فرمايلي دي: (إنَّ أخوف ما أخاف عليكم الشرک الأصغر، قالوا: و ما الشرک الأصغر يا رسول الله؟ قال ﷺ: الرياء، يقول الله – عز وجل– يوم القيامة –إذا جزى الناس بأعمالهم– اذهبوا إلى الذين كنتم تراءون في الدنيا؛ فانظروا هل تجدون عندهم جزاًء؟) احمد].**

**ژباړه:**زما ډيره ويره ستاسو په هکله وړوکی شرک دی. وويل شوه: يا رسول الله وړوکی شرک څه دی؟ رسول اللهﷺ وفرمايل: رياء ده ، الله تعالی د قيامت په ورځ کله چې خلکوته د اعمالو بدله اوجزا ورکوي، فرمايي:ولاړشئ هغو کسانوته چې په دنيا کې مو د هغو لپاره ريا کوله وګورئ ايا خپله بدله او ثواب د هغو په وړاندې پيدا کولای شئ؟

د ريا کار ځاي دوزخ دی. د الله رسول په يوه جنګ کې خپلو صحابه ووته خبر ورکړ چې فلانی به دوزخ ته داخليږي او دا نفر هم په جنګ کې برخه درلوده، صحابه وو دده په هکله فکر کاوه څو ووينې چې دده قضيه څه ده؟ دوی وليده چې ډير په شدت جنګ کوي، د صحابه وو تعجب زيات شو خو څه وخت وروسته عجيبه پيښه رامنځ ته شوه، دا زړور سړی ټپي شو او خپله توره يې واخسته او ځان يې پرې وواهه، صحابه وو ورته وويل: افسوس پرتا ايا ځان په خپله وژني؟ سړي ځواب ورکړ زه ددې لپاره جنګيدم څو نورکسان زما بيباکي او ميړانه ووينې، بالآخره هغه سړی مړ شو او د رسول اللهﷺ خبره پرې رښتينې شوه.

همدارنګه رسول اللهﷺ موږ ته خبر راکړ چې ريا کارانوته قيامت کې ترټولو مخکې عذاب ورکول کيږی او دری ډلې خلک به تر ټولو مخکې دوزخ ته داخليږي: ريا کار عالم، ريا کار قاري او ريا کار شهيد، ځکه دوی خاص د الله لپاره کار نه کوي او نه د الله خوشحالي يې موخه ده.

**رياء عبادتونه با طلوي**

کله چې انسان کوم عبادت پرته له اخلاصه ترسره کوي د هغه په مقابل کې هيڅ ډول اجر او بدله نه مومي او په عوض کې د ګناه مرتکب او د جزا وړ ګرځي، ځکه هغه عمل يې د جهانيانو د پروردګار لپاره نه دی خالص کړی. الله تعالی فرمايي:

﴿فَمَثَلُهُ كَمَثَلِ صَفْوَانٍ عَلَيْهِ تُرَابٌ فَأَصَابَهُ وَابِلٌ فَتَرَكَهُ صَلْدًا لاَّ يَقْدِرُونَ عَلَى شَيْءٍ مِّمَّا كَسَبُواْ وَاللّهُ لاَ يَهْدِي الْقَوْمَ الْكَافِرِينَ﴾ (البقره: ۲۶۴]

**ژباړه:** او دا وړ سرې ، هغې ښویه ډبرې ته پاتې شي چې خاوره پرې دپاسه پرته وي نو چې د باران تیزه شیبه پرې وشي ښویه پاته شي دي هیڅ توان نه لري چې د خپلو کړو ګټه تر لاسه کړ وي او الله تعالی کافر قوم ته سمه لاره نه ښایي.

الله تعالی د ریاکارانو عمل بیهوده او بې فایدې ګڼلی او فرمایي:﴿وَقَدِمْنَا إِلَى مَا عَمِلُوا مِنْ عَمَلٍ فَجَعَلْنَاهُ هَبَاء مَّنثُورًا ﴾. ( فرقان: ۲۳] .

**ژباړه:** او موږ د هغوی ټولې کړنې د دوړو په شان تیت او پرک او تس، نس کوو.

لسم او یوولسم لوست

# شرعي احکام

صفحه: ۱۹– ۲۱
وخت: یو درسي ساعت
د لوست موخې: زده کوونکي باید:
- د حکم او شرع تعریف وپوهیږي.
- د شریعت ډولونه وپیژني.
- اوامر او نواهي تعریف کړای شي.
- حرام او حلال وپیژني هر یو د قرآن او حدیث نه د مثال په توگه بیان کړی شي.
- عقیده ولري چې څوک په شرع حکم نه کوي هغه کافر، فاسق او ظالم دی.

**اړینه پوهه**

**د حکم تعریف:**

د اصول فقهې د علماوو په نظر حکم د الهي خطاب نه عبارت دی چې د اقتضاء یا تخییر یـــا د مکلفینـــو د اعمالو له وضع کولو سره اړیکې نیسي.

د الهي خطاب نه مراد، د الله مستقیم کلام یعنی قرآن او بالواسطه کلام یې یعنی سنت، اجماع او نور دلایـــل دي چې الله تعالی د خپل حکم د پیژندلو لپاره ټاکلي دي.

د اقتضاء نه مراد طلب او غوښتنه ده برابره ده د فعل د انجامولو غوښتنه یا د هغو د پرېښودلو، برابره ده دا دوه ډوله طلب او غوښتنه د الزام او اجبار په توگه وي یا د ترجیح په توگه.

د تخییر څخه مراد د مکلف لپاره پرته له ترجیح د یوکار ترسره کولو یا پرېښودلو مساوات دی او د مکلف لپاره د دواړو مباح کول دي.

د وضع نه مراد دا دی چې یوشی د سبب یا شرط یا مانع په عنوان د بل شي لپاره وگرځول شي.

**د شرعي حکم ډولونه:**

د اصولو علماوو حکم په دوه ډوله ویشلی دی:

۱– تطبیقی حکم: یعنی هغه حکم دی چې یا د یو فعل د انجامولو غوښتنه کوي او یا د هغـــه څخـــه د لاس اخستلو او یا دکولو اونه کولو ترمنځ د تخییر غوښتونکی وي.

۲– وضعي حکم: هغه حکم دی چې یوشی د سبب یا شرط یا مانع په عنوان د بل شی لپاره د ځاي پرځـــای کولو غوښتونکی وي.

**د تکلیفی حکم ډولونه:**

د اصول فقهې ډیری علماوو تکلیفي حکم په پنځه ډوله ښودلی دی:

۱– واجب یا ایجاب
۲– مستحب یا استحباب( مندوب یاندب)
۳– حرام یا تحریم
۴– مکروه یا کراهت
۵– مباح یا اباحت

**د واجبو تعریف:**

په شرعي اصطلاح کې واجب هغه عمل دي چې شارع د هغه ادا کول په الزامي بڼه غوښتې وي؛ په داسې توګه چې پرېښودونکی يې د رټنې مورد وګرځي او دا رټنه د عذاب او مجازاتو سره ملګرې وي او فاعل يې د ستاينې وړ ګرځي او دا ستاينه او صفت د ثواب سره ملګري دی.

جمهور علماء واجب همدا فرض ګڼي اما احناف د هغه دليل له کبله چې د فعل د انجام لزوم په هغه ثابت شوی وي، د دې دواړو ترمنځ توپير کوي.

**د مندوب (مستحب) تعریف:**

ندب سم کار ته د بلنې په معنا دی او مندوب هغه دی چې وګړي هغه ته راغوښتل شوی دی. اما په اصطلاح کې هغه څه دي چې شارع د هغه اداء کول په غير الزامي توګه غوښتلي وي په داسې توګه چې فاعل يې د ستاينې وړ ګرځيدلی وي ثواب پرې حاصلوي. اما پرېښودونکي يې د بدۍ او عذاب مورد نه ګرځي اما کله د ځنو مستحباتو د پرېښودو په وجه د رټنې مورد ګرځي.

**د حرامو تعریف:**

حرام هغه دي چې شارع په الزامي او حتمي توګه له مکلف څخه غوښتني وي چې له هغه څخه ځان وژغوري او لاس ترې واخلي. او په نتيجه کې د هغه پرېښودونکي ته اجر او تابع والی دی، اما ترسره کوونکي يې ګنهکار دي. برابره ده د تحريم دليل يې قطعي وي او څه شبهه پکې نه وي لکه د زنا حراموالي او يا دا دليل ظني وي لکه هغه شيان چې په احاد سنتو تحريم شوي وي.

**د مکروه تعریف:**

مکروه هغه دي چې پرېښودل يې د کولونه غوره دي يا دا چې شارع يې پرېښودل په غير حتمي او غير الزامي توګه د مکلف نه غوښتني وي.

د مکروه حکم دا دی چې فاعل يې نه ګناهکاريږي اما د ملامتيا مورد ګرځي او پرېښودونکي يې که د الله تعالی لپاره پرېښي وي.د ستاينې مورد ګرځي او ثواب مومي.

**د احنافو له نظره د مکروه ډولونه:**

احناف مکروه په دوه ډوله ګڼي:

۱ – تحريمي مکروه: هغه دي چې د يو ظني دليل په بنسټ شارع په حتمي توګه د مکلف نه د هغه څخه ځان ژغورنه غوښتې وي. لکه د يو تن د نکاحِ غوښتنه د بل په غوښتنې باندې او يوه بيع په بلې بيعې باندې، ځکه په دې دواړو کې منع په احاد خبر سره ثابت ده چې ظني دليل دی. او د احنافو په وړاندې دا ډول

مکروه د واجبو په مقابل کې ځای لري او حکم يې د جمهورو په نزد حرام دی يعنی فاعل يې د عذاب او سزا لايق دی اما د دليل د ظني توب په خاطر يې منکر نه کافر کيږي.

۲ – تنزيهي مکروه: هغه دي چې شارع يې د مکلف نه پريښودل په غير الزامي توگه غوښتي وي لکه د آسو د غوښې خوړل چې په جهاد کې ورته ضرورت دی. او يا په هغه باقيمانده اوبو اودس کول چې ښکاري مرغانو ورڅخه څښلې وي. د دې دول مکروه حکم دا دی چې فاعل يې د عذاب مورد نه گرځي که څه هم تر سره کول يې خلاف اولی دي.

مباح: هغه دي چې شارع مکلف د هغه په کولو يا پريښودلو کې اختيارمن گرځولی وي او په کولو يا پريښودلو کې يې ستاينه او رټنه نشته او حلال ورته ويل کيږي.

**دوولسم او دیارلسم لوستونه**

# د غسل فرضونه او واجبوونکي:

**صفحه: ۲۳ – ۲۵**

**وخت: یو درسي ساعت**

**د لوست موخې – زده کوونکي باید:**

- **د غسل په تعریف او ډولونو وپوهیږي.**
- **د غسل فرضونه او سنتونه وپیژني**
- **هغه موارد چې غسل پر شخص فرضیږي هغه بیان کړی شي.**
- **هغه اووه ځایونه چې د غسل تر سره کول پکې مستحب دي هغه ذکر کړای شي.**
- **دا عقیده ولري چې د جنب لپاره د لمانځه اداء کول روا نه دي او غسل شرعي امر دی.**

**اړینه پوهه**

**د غسل تعریف**: غسل (د غین په فتحه) په لغت کې مطلق وینځلو ته وایي. او د غین په کسرې سره (غسل) د هغه څه په معنا دی چې د هغه په واسطه وینځل کیږي لکه صابون، سرکه او داسې نور...

غسل ( د غین په ضمې سره) د ټول بدن له مینځلو او موښلو څخه عبارت دی البته په پاکو اوبو په ځانگړې طریقه د شریعت د امر له وجې.

**د غسل مشروعیت:**

د غسل مشروعیت د څو قرآني آیتونو څخه ثابت دی لکه چې الله تعالی فرمایي:﴿وَإِن كُنتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُواْ﴾ المائده ۶آیت.

ژباړه: که په جنابت کې واست نو ټول بدن مو ښه ومینځئ.

او همدارنگه فرمایي: :﴿وَيَسْأَلُونَكَ عَنِ الْمَحِيضِ قُلْ هُوَ أَذًى فَاعْتَزِلُواْ النِّسَاء فِي الْمَحِيضِ وَلاَ تَقْرَبُوهُنَّ حَتَّىَ يَطْهُرْنَ فَإِذَا تَطَهَّرْنَ فَأْتُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ أَمَرَكُمُ اللّهُ إِنَّ اللّهَ يُحِبُّ التَّوَّابِينَ وَيُحِبُّ الْمُتَطَهِّرِينَ﴾. بقره (۲۲۲)آیت.

ژباړه: او دوی له تا څخه د د حیض په هکله پوښتنه کوي . ورته ووایه حیض ناولتوب دی د حیض په وخت کې له ښځو څخه ځانونه لرې کړئ او ترڅو چې پاکې شوې نه وي مکه ورنژدې کیږئ او کله چې ښې پاکې شي نو په همغه ځای کې ورته ورشئ چې الله تعالی درته امر کړی دی په یقین سره چې الله تعالی توبه ویستونکی او پاکی کوونکي خوښوي.

همدارنگه د غسل مشروعیت د پیغمبرﷺ له حدیث څخه هم ثابت دی لکه چې فرمايي: ( أنَّ أمَّ سُلَیم قَالَت: یَا رَسولَ اللهِ إنَّ اللهَ لاَیَستَحی مِنَ الحَقِّ، فَهَل عَلَی المَرأۀ غُسل اذاإحتَلَمَت؟ قَالَ: نَعَم، إذا رَأت الماء ).رواه شیخان او نور.

ژباړه: د ام سلمې نه روايت دی چې ام سليم وويل: اې د الله رسوله: الله د حق له بیانولو حیاء نکوي ایا د احتلام (شيطان غولوني) په صورت کې پر ښځه غسل واجبيږي؟ پيغمبرﷺ وفرمايل: بلې هر کله چې اوبه وويني.

**د غسل واجبوونکي:**

غسل په پنځو شيانو واجبيږي:

**الف:** د شهوت په توګه د منيو وتل د خوب يا بيدارۍ په حالت کې، نر وي يا ښځه، دا د ټولو جمهورو فقهاوو نظر دی. او دا مسئله د ياد شوي حديث څخه ثابتيږي.

**ب:** په فرج کې د حشفې پټيدل پرته له دې چې انزال رامنځ ته شي لکه چې الله فرمايي: ﴿وَإِن كُنتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُواْ﴾. كه په جنابت كې واست نو ټول بدن مو ښه ومينځئ.

**ج:** د حيض او نفاس قطع كيدل: لكه چې الله تعالی فرمايي:﴿ وَلاَ تَقْرَبُوهُنَّ حَتَّىَ يَطْهُرْنَ فَإِذَا تَطَهَّرْنَ فَأْتُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ أَمَرَكُمُ اللّهُ﴾. البقره: ٢٢٢.

ژباړه: ځانونه لرې کړئ او تر څو چې پاکې شوې نه وي مه ور نژدې کيږئ او کله چې ښې پاکې شي نو په همغه ځای کې ورته ورشئ چې الله تعالی درته امر کړی.

**د:** وفات کيدل: هر کله چې مسلمان وفات شي غسل ورکول واجب دي.

**ه:** هر کله چې کافر مسلمان شي.

**هغه څه چې په جنب حرام دي:**

١ – لمونځ

٢ – طواف كول

٣ – د قرآن لمس كول او پورته كول.

٤ – په جومات كې ځنډ كول.

**د جنابت لاملونه:**

د جنابت لاملونه دوه څيزونه دي:

١ – د نر يا ښځې څخه د منيو وتل په دې شرط چې د خپل ځای نه په شهوت او لذت جلا شي، لږ وي يا ډير، په خوب کې وي يا په ويښه.

٢ – جماع: کمه کچه يې داده چې د تناسلي غړي سر د ښځې په فرج يا د ښځې يا نر په مقعد کې داخل شي، دا فرج حلال وي يا حرام، مني خارج شي او يا خارج نشي.

**سنت غسلونه:**

په پنځو وختونو کې غسل سنت دی:

۱ – د جمعې د لمانځه لپاره غسل.

۲ – د واړه عید د لمانځه لپاره.

۳ – د لوی عید د لمانځه لپاره.

۴ – د احرام تړلو په مهال.

۵ – د عرفات په ورځ د حاجي لپاره د لمر له زوال وروسته.

**مستحب غسلونه:**

په لاندې وختونو کې غسل مستحب دی:

۱ – د شعبان د میاشتې نیمه شپه کې (۱۵).

۲ – د قدر په شپه.

۳ – د کسوف (لمرنیولو) د لمانځه اداء کولو لپاره.

۴ – د خسوف (سپوږمۍ نیولو) د لمانځه اداء کولو لپاره.

۵ – د استسقاء د لمانځه لپاره.

٦ – د ویرې او وحشت په مهال.

۷ – د تیارې خوریدو په مهال .

۸ – د سخت باد او طوفان په وخت کې .

۹ – د نووو جامو اغوستلو څخه مخکې .

۱۰ – د ګناهونو څخه د توبې په مهال.

۱۱ – د مسافر د را رسیدو په مهال .

۱۲ – مدینې منورې ته په داخلیدو سره.

۱۳ – مکې مکرمې ته په داخلیدو سره .

خوارلسم لوست

# روژه

صفحه :۲۷

وخت: دوه درسي ساعتونه

د لوست موخې – زده کوونکي باید:

– د روژې تعریف وپیژني.

– په دې وپوهیږي چې روژه د اسلام اساسي رکن دی.

– د روژې ګټې او حکمتونه نورو ته بیان کړی شي.

– د روژې په فرضیت عقیده ولري.

**اړینه پوهه**

**د روژې لغوي تعریف**: روژې ته په عربي ژبه کې صوم ویل کیږي د صوم معنی ده ځان ساتنه او پرهیز. په قرآن کریم کې راغلي: ﴿انِّي نَذَرْتُ لِلرَّحْمَنِ صَوْمًا فَلَنْ أُكَلِّمَ الْيَوْمَ إِنسِيًّا﴾. مریم: ۲۶.

ژباړه: ما د رحمن لپاره روژه نذر کړې نن به له هیچا سره خبرې ونه کړم.

د اسلام د پیل څخه مسلمانان صحابه کرام او تابعین د روژې مبارکې میاشتې ته په ځانګړي ارزښت قایل وو، د الله تعالی نه به یې سوال کاوه چې هغوی تر روژې پورې ژوندي وساتي څو د دې برکتناکې میاشتې روژه ونیسي او د روژې په راتلو به خوشحالیدل، د ورځې روژه او شپه یې په لمانځه او د قرآن په تلاوت رڼوله، په دې میاشت کې یې د ډول ډول طاعتونو په انجامولو سره خپل نفس تزکیه کاوه، د روژې مبارکې تر رارسیده د مخه دوی په ډیره بې صبرۍ د روژې په انتظار کې وو لکه څنګه چې په اوږده حدیث کې سلمان فارسي رضی الله عنه روایت کوي. حضرت سلمان وایي: رسول الله ﷺ د شعبان په وروستۍ ورځ موږ ته خطبه واوروله او موږ یې د روژې را رسیدلو ته متوجه کړو او ویې فرمایل: ((اقد اظلکم شهر عظیم )) که څه هم علماوو د دې حدیث په جرح او تعدیل کې ملاحظات لري اما په ټولیزه توګه دا حدیث د فضایلو په باب کې د عمل کولو وړ دی.

**روژه د اسلام د ارکانو څخه یو لوړ رکن دی:**

د پیغمبر ﷺ په حدیث کې راغلي فرمایي:

(بُنِي الْإِسْلَامُ عَلَى خَمْسٍ شَهَادَةِ أَنْ لَا إِلَه إِلَّا اللُّه وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ وَإِقَامِ الصَّلَاةِ وَإِيتَاءِ الزَّكَاةِ وَالْحَجِّ وَصَوْمِ رَمَضَانَ)

ژباړه: د اسلام دین په پنځو ستنو ولاړ دی، په دې شهادت ورکول چې د الله نه پرته هیڅوک د عبادت لایق نشته او محمد د الله بنده او رسول دی، د لمانځه قایمول، زکات ورکول، د بیت الله حج کول او د رمضان میاشتې روژې نیول دي.

**د روژې ګټې او حکمتونه:**

حکیم شارع چې هر عبادت روا کړی او هر څه یې چې پیدا کړي د انسان لپاره له ګټې څخه خالي نــــه دي لکه چې فرمايي: ( هُو الَّذِي خَلَقَ لَكُمْ مَا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا)

ژباړه: الله تعالی هغه ذات دی چې ستاسو لپاره یې ټول هغه څه پیدا کړي چې په ځمکې کې دي.

هر مکلف مسلمان علاوه پر دې چې د اسلامي تکالیفو په انجامولو او د شرعي اعمالو په تعمیل سره د الله اطاعت او فرمانبرداري تمثیلوي زیاتې ګټې او فایدې هم ورڅخه په لاس راوړي.

روژې هم د یو لوی عبادت په عنوان زیاتې فایدې په ځان کې رانغښتې دي چې ځنو ته داسې اشاره کیږي:

**۱ – روژه د الهي نعمتونه د شکر ایستلو مظهر دی:**

کله چې مؤمن انسان د روژې په میاشت کې د دریو ماتوونکو (خوړلو، څښلو او جماع) څخه ځان ژغوري نو له یوې خوا د الهي نعمتونو قدر ور ته څرګندیږي او له بلې خوا د دې نعمتونو څخه د انسان په روح او وجود کې د شکر ایستلو معیار زیاتوالی مومي او دا مسلمه خبره ده چې د نعمت شکر د الهي نوازشونو (نازولو) په زیاتوالي کې اغیز لري لکه چې وايي:

شکر نعمت، نعمتت افزون کند، کفر نعمت از کفت بیرون کند.

یعنې د نعمت شکر به دې نعمتونه زیات کړي او د نعمت کفر (ناشکري ) په دې نعمت له ورغوي وباسي.

او الله تعالی هم د روژې د احکامو په ترڅ کې فرمايي: (وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ)یعنی څو تاسې شکر وکاږئ.

**۲ – روژه په انسان کې د تقوی د معیار د زیاتوالي وسیله ده:** کله چې مسلمان په روژه کې د الله د رضا جلبولو په خاطر د حلالو څیزونو څخه ځان ژغوري نو په حقیقت کې دا یو ډول تمرین دی څو څرنګه د پروردګار په پیروۍ کې د شرع خلاف کارونو څخه پرهیز وکړي. الله تعالی فرمايي: (لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ)یعنی روژه ونیسئ څو پرهیزګار شئ.

**۳ – روژه د نفساني غوښتنو په وړاندې د مقاومت مهم سنګر دی:**

کله چې روژه لرونکي د لوږې په واسطه ځان ډنګروي په واقعیت کې خپله معنوي او روحاني قوه د حیواني او شهواني قوې په مقابل کې پیاوړې کوي. او دا چې د معنوي قوې په واسطه شهواني قوه ضعیفیږي نو مسلماً په بشري ټولنه کې د جرایمو په ځانګړې توګه د جنسي جرایمو ډولونه کمیږي. د اسلام پیغمبرﷺ په دې هکله فرمايي: ( الصَّوْمُ جُنَّةٌ) یعنی روژه ډال ده.

**۴ – روژه د بیدارۍ احساس او د بیوزلانو سره همدردي ده:**

کله چې انسان د روژې په نیولو د لوږې احساس کوي او د لوږې له سختۍ او فشار سره مخ کیږي نو نور نشي کولای د بیوزلانو او غریبانو وګړو په وړاندې بې تفاوته واوسي بلکې عاطفه قوه یې په جوش راځي او د دوی سره مرستې ته رادانګي. روژه: (وَهُوشَهرُالمواَسَاة) یعني د روژې میاشت د همدردۍ میاشت ده.

**۵ – روژه په ټوله نړۍ کې د اسلامي وحدت مظهر ده:**

کله چې د روژې مبارکه میاشت رارسیږي په حقیقت کې ټول اسلامي امت برابره ده په شرق کې وي یا په غرب، په شمال کې وي یا په جنوب کې په ډیر کم تفاوت چې هغه هم په زرګونو حکمتونه په ځان کې رانغاړي لکه د ورځو اوږدوالی او لنډ والی، د یوې ورځې مخکې والی یا وروسته والی او داسې نور روژه نیسی او همدارنګه عید کوي.

**٦ – روژه د هاضمې دستګاه غښتلې کوي:**

دا چې روزه نیوونکي د روژې په مبارکې میاشت کې د خوراک په خوړلو زماني تفاوت او څنډ راولي نو د هاضمي دستګاه دا فرصت مومي چې راحت نفس واخلي، په راحت شي او هاضمه یې پیاوړې شي.

۷ – روژه د مرضونو علاج او تداوي ده:

همدارنګه روژه د ډیرو مرضونو د مخنیوي لپاره لکه چاغوالی، د وینې فشار، قلبي مرضونو او نورو مزمنو اختلالاتو او داسې نورو مرضونو لپاره بې اندازې اغیزناکه ده او په دې حقیقت باندې غیر مسلم څیړونکي هم قایل دي او رسول الله ﷺ په دې هکله فرمایلي دي: (وَصُومُواتَصِحُّوا)یعنی روژه ونیسئ څو روغ پاتې شئ.

پنځلسم لوست

# د روژې فرضيت

**صفحه :۲۹**

**وخت: دوه درسي ساعتونه.**

**د لوست موخې: زده کوونکي باید:**

**د روژې شرعي حکم وپيژني.**

**وپوهيږي چې د روژې مبارکه مياشت، لوی فضيلت لرونکې ده.**

**د دې مياشتې په هکله نورو ته معلومات ورکړای شي.**

**د روژې په فرضيت او داچې سراسر د مسلمان لپاره ګټه ده باور ولري.**

**اړينه پوهه**

**﴿شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِيَ أُنزِلَ فِيهِ الْقُرْآنُ هُدًى لِّلنَّاسِ وَبَيِّنَاتٍ مِّنَ الْهُدَى وَالْفُرْقَانِ فَمَن شَهِدَ مِنكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ وَمَن كَانَ مَرِيضًا أَوْ عَلَى سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِّنْ أَيَّامٍ أُخَرَ يُرِيدُ اللّهُ بِكُمُ الْيُسْرَ وَلاَ يُرِيدُ بِكُمُ الْعُسْرَ وَلِتُكْمِلُواْ الْعِدَّةَ وَلِتُكَبِّرُواْ اللّهَ عَلَى مَا هَدَاكُمْ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ﴾**

**ژباړه: روژه هغه مياشت ده چې په دې کې هغه څوک چې له تاسو دا مياشت ومومي، نو روژه دې ونيسي، او څوک چې ناورغ يا پر سفر وي نو شمير دې له نورو ورځو څخه پوره کړي. الله تعالی ستاسې لپاره اسانتيا غواړي نه سختي. تر څو تاسې ټاکلي ورځې پوره او الله تعالی لويې په همغه ډول وستايي چې تاسې ته يې ښوونه کړې ده او شکر يې وکړئ.**

**د روژې شرعي حکم:**

**د اسلامي امت علماء اجماع لري چې د روژې د مياشتې روژه پر هر عاقل او بالغ مسلمان باندې فرض ده. پرېښودونکی يې د لويې ګناه مرتکب او منکر يې کافر دی، په فرضيت يې هم قرآني آيتونه او هم نبوي احاديث شتون لري چې مشت نمونه خروار دلته ذکر کيږي: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ﴾ ژباړه: اې مؤمنانو پرتاسې باندې روژه فرض کړای شوې ده. په دې مبارک آيت کې د ﴿كُتِبَ﴾ لفظ معنا ده(فُرِضَ) يعنی فرض کړی شوې ده. همدارنګه په حديث کې راغلي دي (بني الإسلام على خمس: شهادة أن لا إله إلا الله ، وأن محمدا رسول الله ، وإقام الصلاة ، وإيتاء الزكاة ، وحج البيت ، وصوم رمضان) يعنې اسلام په پنځو ستنو ولاړ دی چې يوه له هغو څخه روژه ده. همدارنګه د اسلامي امت پوهانو د روژې په فرضيت باندې اجماع کړې ده او هيڅ څوک په کې اختلاف نه لري.**

**د روژې د فرضيت تاريخ:**

روژه د يو بدني مهم عبادت په عنوان د پخوا زمانو را هيسې د بشر په منځ کې د اوسنۍ زمانې د مسلمانانو د روژې سره د ملاحظې وړ توپيرونه لري ځکه د هغو روژه يوه ورځ، د ځينو يوه هفته او يا داسې يوه ورځ وه چې په هغې کې به د غوښې له خوړلو ځان ژغورنه وه. همدارنګه د هغو روژو مظاهرنن ورځ په ځينو روميانو او نورو کې ليدل کيږي. اما دغه روژه چې نن مسلمانان په هغه مامور دي د هجرت په دوهم کال د شعبان په دوهمه ددې آيت په نزول سره فرض شوه ﴿شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِيَ أُنزِلَ فِيهِ الْقُرْآنُ هُدًى لِّلنَّاسِ وَبَيِّنَاتٍ مِّنَ الْهُدَى وَالْفُرْقَانِ فَمَن شَهِدَ مِنكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ وَمَن كَانَ مَرِيضاً أَوْ عَلَى سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِّنْ أَيَّامٍ أُخَرَ يُرِيدُ اللّهُ بِكُمُ الْيُسْرَ وَلاَ يُرِيدُ بِكُمُ الْعُسْرَ وَلِتُكْمِلُواْ الْعِدَّةَ وَلِتُكَبِّرُواْ اللّهَ عَلَى مَا هَدَاكُمْ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ﴾

**ژباړه:** روژه هغه مياشت ده چې په دې کې هغه څوک چې له تاسو دا مياشت ومومي، نو روژه دې ونيسي، او څوک چې ناورغ يا پر سفر وي نو شمير دې له نورو ورځو څخه پوره کړي. الله تعالی ستاسې لپاره اسانتيا غواړي نه سختي. تر څو تاسې ټاکلي ورځې پوره او الله تعالی لويې په همغه ډول وستايي چې تاسې ته يې ښوونه کړې ده او شکر يې وکړئ.

پيغمبرﷺ د دې مياشتې له فرضيت نه مخکې د عاشورا روژه نيوله.

**نن ورځ روژه په دې توګه ثابتيږي:**

د رمضان د مياشتې مبارکه روژه د هلال (مياشتې) په ليدلو فرض کيږي نو په مسلمان لازمه ده چې د هلال د ليدلو لپاره ډيره هله ځله وکړي څو الله جل جلاله مکړه په روژه کې يې نقصان رانشي، او د رمضان د مياشتې ليدنه بايد د دوه عادلو تنو نر وي او که ښځه بايد تصديق شي اما که ډيرو مسلمانانو هلال ليدلی وي بيا عدالت پکې شرط نه دی. په داسې صورت کې چې آسمان وريځ وي بيا بايد د شعبان (۳۰) ورځې پوره کړي. په حديث کې راغلي دي: (صُومُوا لِرُؤْيَتِهِ وَأَفْطِرُوا لِرُؤْيَتِهِ فَإِنْ غُمِّيَ عَلَيْكُم فَأَكْمِلُوا عِدَّةَ شَعْبَانَ ثَلَاثِينَ) ژباړه: د روژې د مياشتې په ليدلو روژه ونيسئ او د هغې په ليدو روژه ماته کړئ نو که چيرې مياشت در باندې پټه شوه بيا د شعبان ديرش ورځې بشپړې کړئ.

**د روژې فضيلتونه**

د رمضان(روژې مياشت) په حقيقت کې د کال د ټولو مياشتو سرداره ده، داسې مياشت ده چې په هغې کې قرآن کريم نازل شوی، اللهﷻ ته د نږديکت، نيکۍ، احسان، ښښنې، د رحمت او رضوان مياشت ده، داسې مياشت ده چې د قدر شپه په کې ده او د قدر شپې عبادت تر زرو مياشتو غوره دی، دا د دعاوو قبليدو مياشت ده او... په فضليت کې يې ډير احاديث راغلي دي لکه:

۱- (س سَيِّدُ الشُّهُورِ رَمَضَانُ، وَسَيِّدُ الأَيَّامِ يَوْمُ الْجُمُعَةِ) يعنې روژه د مياشتو سرداره او جمعه د ورځو سرداره ده.

۲- **(لَو يَعلَمُ العِبَادُ مَا فِي رَمَضَانَ، لَتمنت أمتي أن يكون رمضان السنة كلها)** يعنې كه خلک پوه شي چې په رمضان کې څه پټ دي نو امت به مې دا هيله وکړي چې ټول کال روژه وای.

۳- ( أَتَاكُمْ رَمَضَانُ شَهْرٌ مُبَارَكٌ ، فَرَضَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ عَلَيْكُمْ صِيَامَهُ ، تُفْتَحُ فِيهِ أَبْوَابُ السَّمَاءِ ، وَتُغْلَقُ فِيهِ أَبْوَابُ الْجَحِيمِ ، وَتُغَلُّ فِيهِ مَرَدَةُ الشَّيَاطِينِ ، لِلَّهِ فِيهِ لَيْلَةٌ خَيْرٌ مِنْ أَلْفِ شَهْرٍ مَنْ حُرِمَ خَيْرَهَا فَقَدْ حُرِمَ ) يعنې د رمضان مياشت پرتاسو راغلې ده دا هغه مبارکه مياشت ده.

۴- (إِذَا دَخَلَ رَمَضَانُ فُتِّحَتْ أَبْوَابُ الجَنَّةِ ، وَغُلِّقَتْ أَبْوَابُ جَهَنَّمَ ، وَسُلْسِلَتِ الشَّيَاطِينُ) ژباړه: کله چې د رمضان مياشت راورسيږي د جنت دروازې پرانيستل کيږي او په بل روايت کې راغلي رسول اللهﷺ فرمايلي دي: کله چې د روژې مياشت را ورسيږي د آسمان دروازې پرانيستل کيږي او د دوزخ دروازې تړل کيږي او سرکش شيطانان په ځنځيرونو تړل کيږي. په دې کې يوه شپه ده چې د زرو مياشتو څخه غوره ده، څوک چې ددې له خير څخه محروم شو، يقيناً محروم شو.

**د روژې په مياشت کې دا پيښې رامنځ ته شوې دي:**

۱- قرآن کريم په کې نازل شوی.

۲- د بدر کبری غزا په کې تر سره شوې ده. او دا هغه غزا ده چې الله پاکﷻ ورته (يوم الفرقان) ويلي دي او دا پيښه د جمعې په ورځ د روژې په ۱۷ د هجري کال په دريمه رامنځ ته شوې ده.

۳- د مکې مکرمې فتح: دا پيښه د جمعې په ورځ په ۲۰ يا ۲۱ د هجرت په ۸ کال پيښه شويده.

۴- د تبوک د غزا ځينې پيښې په روژې کې د هجرت په ۹ کال رامنځ ته شوې دي.

۵- په اسلامي هېوادونو کې د اسلام خپريدل د هجرت په لسم کال په همدې مياشت کې واقع شول.

٦- د هجرت په ۸ کال د روژې په ۲۵ نېټه هغه تعمير چې هلته به د (عزا) بت عبادت کېده ونړيده.

شپاړسم لوست

# د روژې ډولونه:

**صفحه: ۳۱**

**وخت: دوه درسي ساعتونه.**

**د لوست موخې: زده کوونکي باید:**

- د روژې د احکامو ډولونه وپيژني.
- د هر شرعي حکم په مرتبه او مقام وپوهيږي.
- دا چې د اختر په ورځ روژه نده روا ددې دليل وويلی شي.
- د روژې په ډولونو عقيده ولري او نورو ته يې بيان کړای شي.

**لازمي پوهه:**

**د روژې ډولونه:**

روژه پر اته ډوله ويشل شوې ده په دې طريقه:

۱. معينه فرض روژه: لکه د رمضان د مياشتې روژه.

۲. غير معينه فرض روژه: لکه د رمضان د مياشتې قضايي روژې.

۳. معينه واجب روژه: لکه نذري روژه يعنی هغه روژه چې په هفتې ، مياشتې او کال او نورو مقيده شوې وي. مثلاً ووايي: زه نذر کوم چې د پنجشنبې ورځ روژه ونيسم.

۴. غير معينه واجب روژه: لکه په مطلقه توگه نذري روژه يعنی وخت يې نه وي ټاکلی.

۵. مسنونه روژه لکه: الف: د عرفې يعنی د ذوالحجې په (۹) ورځ روژه. ب – د محرم الحرام نهمه او لسمه ورځ روژه.

د ايام بيض د (۱۳ – ۱۴ – ۱۵) د اسلامي مياشتو هره مياشت روژه.

٦. مستحب روژه: د فرض، واجب، سنت څخه وروسته نورې ټولې روژې مستحب دي همدارنگه نفلي روژې هم په مستحباتو کې شاملې دي لکه د دوشنبې، پنجشنبې او جمعې ورځې روژه.

۷. مکروه تحريمي روژه: د عيدالفطر او عيد قربان د اولې ورځې روژې د تشريق د ورځو ذوالحجې (۱۱ – ۱۲ – ۱۳) روژې، دا د حنفي فقهاوو په نزد مکروه تحريمي دي او تحريمي مکروه حرامو ته نږدې دي. همدارنگه يوازې د شنبه ورځ روژه نيول او يا يوازې د يکشنبه ورځ روژه نيول اويا د مهرجان د ورځې روژه نيول چې د يهودو، نصاراوو او مجوسو سره مشابهت دی.

۸. مکروه تنزيهي روژه: لکه يوازې د محرم الحرام لسمه ورځ روژه نيول.

**د روژې وخت:**

روژه د صبح صادق څخه پیل د لمر تر ډوبیدو پورې ادامه مومي. صبح صادق: هغه روښنایي ده چې د اسمان په مشرقي افقو کې د شمال نه د جنوب په لوري څرګندیږي او په تیزی په افقو ( کنارو) کې خوریږي له هغې وروسته بیا تیاره نه وي.

اما صبح کاذب: هغه سپینوالي دی چې په عمومي توګه د ځمکې څخه د آسمان په لوري د صبح صادق نـــه مخکې رامنځته کیږي. او بیا په تیزی ورکیږي او له هغه وروسته تیاره را څرګندیږي.

اوولسم لوست

# د روژې مفسدات

**صفحه: ۳۳**

**وخت: یو درسي ساعت.**

**د لوست موخې: زده کوونکي باید:**

۱-د روژې ماتوونکي وپیژني.

۲-وپوهیږي چې څه وخت قضاء، څه وخت کفاره او یا دواړه لازمیږي.

۳-د روژې د ماتیدو په هکله نورو ته معلومات وړاندې کړای شي.

۴-د روژې په مفسداتو او مکروهاتو عقیده او علم ولري.

**اړینه پوهه**

**د روزژې مفسدات:**

هغه څه چې روژه فاسدوي پر دوه ډوله دي:

۱-هغه شیان چې تر سره کول یې د روژه تي لپاره مکروه دي، هغه داسې شیان دي که روژه لرونکی یې تر سره کړي ددې خطر شته چې روژه تی د روژې فساد ته وهڅوي ځکه د انسان حیواني جاذبه قوه، چې په دې مواردو کې ډیر قوي عمل کوي او د روژې د فساد لامل کیږي.

۲-هغه شیان دي چې تر سره کول یې د روژه تي لپاره مکروه نه دي ځکه روژه لرونکي ته دا خطر نه لري چې هغه د روژې فساد ته وهڅوي.

**ددې جملو توضیح:**

هغه ځیزونه چې د روژه تي لپاره مکروه او یا مکروه نه دي لکه:

۱-د نارینه وو لپاره د روژې په حالت کې د رنجو استعمال مکروه نه دی په دې شرط چې زینت لپاره نه وي. او که چېرې د زینت لپاره وي بیا مکروه دي. اما د ښځو لپاره مطلقاً روا دي. او راجحه خبره داده چې رانجه مکروه نه دي ولو که ذائقه یې په حلق کې هم احساس شي.

۲-د بریتونو او ګیرې غوړول روژه نه مکروه کوي او په دې هکله د فقهاوو په وړاندې څه ځانګړي غوړي یا تیل هم نه دي مطرح.

۳-که روژه تی علاوه پر اوداسه خپله خوله ومینځي، یا په پزه کې اوبه واچوي یا د بدن د یخ کولو په وجه غسل وکړي یا پر سر یخې اوبه واچوي په ټولو یاد شوو صورتونو کې روژه نه مکروه کیږي.

۴-د روژې په حالت کې مسواک وهل مکروه نه دي برابره ده فرضي روژه وي یا نفلي او یا واجب، مسواک لوند وي یا وچ.

۵-د روژه تي لپاره د عطرونو بویول مکروه نه دي.

**هغه څه چې روژه تي ته د روژې په مهال مکروه دي:**

– څه شی په خوله کې کيږدي او هغه وژويي خو په دې شرط چې تير نشي.
– د څه شي څکل يعنی که د کومې ښځې ميړه بد اخلاقه وي هغه د ديگ مالگه څکلی شي خو چې ستونې ته تير نشي.
– په خوله کې د لاړو جمع کول چون معدې ته د تيريدو خطر لري نو دا کار مکروه دی.
– غيبت، ناکاره خبرې ، جنگ او دروغ هم مکروه دي.
– د اوبو غرغره کول او په پڼه کې د اوبو کشول.
– د صبح صادق نه وروسته د جنابت غسل ځنډول.
– د غاښونو د کريمو څخه استفاده کول، وينه ايستل، شاقه او سخت کار کول چې د وجود د ضعف ويره وي.

**هغه څه چې روژه فاسدوي.**

**دا دوه څيزونه دي:**

الف: اول هغه دي چې په ارتکاب يې هم قضا لازميږي او هم کفاره لکه:

۱-د روژه تي روژه په ياد وي خو د مضمضې په حالت کې يې ناڅاپه اوبه حلق ته تيرې شی.
۲-کانگه وکړي او وروسته بيا هغه وخوري.
۳-په داسې کچه کانگه وکړي چې خوله يې ډکه شي.
۴-تيږه يا لوټه يا داسی نور څيزونه وخوري.
۵-هغه خواړه چې په غاښونو کې بند وي هغه په ژبه راوباسي او هغه د يو نخود او يا له نخود څه لـــوی وي هغه وخوري.
٦-له نسوارو يا تمباکو څخه گټه واخلي.
۷-د غاښونو وينه وخوري.
۸-په داسې گمان چې لمر ډوب شوی دی روژه وخوري.

**د روژې قضا او کفاره:**

قضا هغه ده چې د يوې ورځې خوړل شوې روژه ونيسي. او کفاره هغه ده چې د خوړل شوې روژې په بدل کې که قدرت ولري او غلام پيدا شي هغه بايد آزاد کړي او که دا ممکنه نه وه نو (٦٠) روژې پر له پســـې ونيسي او بايد پريکون پکې نه وي که پريکون پکې راغی له سره به بيا نيول کيږي. او که ددې توان يې نـــه درلود بيا به (٦٠) مسکينانو ته دوه وخته خوراک ورکوي او خوراک به متوسط وي نه ډير تشريفاتي او نـــه ډير خراب.

# د تراويح لمونځ:

**صفحه: ۳۵**

**وخت: دوه درسي ساعتونه.**

**د لوست موخې: زده کوونکي باید:**

۱-د تراويحو مفهوم او تاريخي سابقه يې وپيژني.
۲-د تراويح لمانځه په ارزښت وپوهيږي.
۳-د تراويح د لمانځه په هکله نورو ته دلايل وويلی شي.
٤-په دې عقيده ولري چې د حنفي مذهب سره سم شل رکعته تراويح سنت مؤکد دي.

**اړينه پوهه**

**د تراويح مفهوم:**

تراويح د ترويحه جمع د راحت، آرامۍ او ستومانۍ رفع کولو په معنی ده. هغه ناسته چې د څلور رکعته تراويح لمانځه نه وروسته د رمضان په مبارکو شپو کې اداء کيږي هغې ته تراويح او ترويحه وايي. اما اوس دغه اصطلاح په هر څلور رکعتي لمانځه چې د روژې په شپو کې اداء کيږي، د مجاز په توګه وربانديې اطلاق کيږي. ځکه د اسلامي امت سلف به له هر څلورو رکعتونو وروسته کيناستل او دمه به يې جوړوله.

**د تراويح د لمانځه حکم:**

د اسلامي نړۍ فقهاء په دې اتفاق لري چې تراويح لمونځ سنت دی. اما حنيفي، حنبلي او ځنې مالکي فقهاء تراويح سنت مؤکد ګڼي. هم نارينه وو ته او هم ښځينه وو ته (الاختيار ٦٨) ردالمحتار (۴۷۲)

د تراويحو لمونځ د سنتو او نوافلو په منځ کې د ډير لوی ارزښت او مقام څخه برخمن دی لکه څنګه چې فقهاء قاعده لري، هر سنت او نفل چې شرعاً په جماعت اداکيږي هغه د نورو سنتو او نفلو په پرتله غوره والی لري او تراويح له همدې ډول لمونځونو څخه دي.

**د تراويح د لمانځه د مشروعيت تاريخ:**

حضرت صديقه عائشه (رضی الله عنها) په دې هکله روايت لري چې «خرج رسول اللهﷺ من جوف الليل ليالی رمضان و صلی فی المسجد و صلی الناس بصلاته و تکاثروا فلم يخرج فی الرابعة، وقال لهم خشيت آن تفرض عليکم فتعجزوا عنها» (بخاری و مسلم)

ژباړه: رسول اللهﷺ د رمضان په شپو کې يوه شپه له کوره ووت او په جومات کې يې لمونځ وکړ او خلکو ورپسې اقتدا وکړه او زيات شول، رسول اللهﷺ څلورمه شپه جومات ته ولاړ نشو او خلکو ته يې وويل: ويريږم چې دا لمونځ پر تاسې فرض نشي چې بيا به ور څخه عاجز پاتې شی.

علماء فرمايي: دا حديث دا ښيي چې د تراويح لمونځ د رسول الله ﷺ د عمر په ورستيو کې مشروع شـوی دی خو په دوام سره يې دده نه اداء کول ثابت نه دي.
وروسته بيا عمر رضی الله عنه په څوارلسم هجری کال خلک په يوه امام پسې راټول کړل او په دې توګه تر نن ورځې پورې دا مبارک سنت ادامه لري.
دا چې رسول الله ﷺ په خپله د تراويح لمونځ کړی دا يې پر سنت والي کفايت کوي اما د عمر رضی الله عنه کړنه هغه ته نور هم پياوړتيا ور بخښي. او داسې حديث هم له رسول الله ﷺ څخه ثابت دی چې فرمايي: پر تاسو زما سنت او د راشدينو خلفاوو سنت لازمي دي.

**د تراويح د لمانځه د رکعتونو شمير:**

جمهور فقهاء لکه حنفيان، شوافع، حنابله، او ځينې مالکيان په دې نظر دي چې د تراويح لمونځ شل رکعتـه دی او دا حضرات په هغه حديث دليل نيسي چې امام مالک رحمه الله روايت کړی هغه دا چې سـائب ابـن نويد وايي:(کان قيام الناس فی زمان عمر بعشرين رکعة و جمع عمر الناس علی هذا العدد).
ژباړه: د عمر رضی الله عنه په دوره کې مسلمانانو د تراويح لمونځ شل رکعته اداء کولو او عمر رضی الله عنه خلک په همدې رکعتونو راجمع کړي دي.
اما کاساني رحمه الله وايي: عمر رضی الله عنه د ابی بن کعب رضی الله عنه په امامت خلک راجمع کـړه او هغه شل رکعته اداء کړې او هيڅ يوه صحابی اعتراض پرې ونکړ، په دې توګه د صحابه وو اجمـاع پـرې راغله.
امام د سوقي وايي: د صحابه وو او تابعينو همدا عمل ؤ ابن عابدين وايي: همدا عمل د خلکو په مشـرق او مغرب کې ؤ.
امام علی السهنوري وايي: شل رکعته تراويح د اسلام د پيل نه تر نن زمانې پورې دوام لري.

**په تراويح کې د قرآن کريم ختم:**

په تراويح کې يو ځل د قرآن کريم ختم سنت دی او د جومات امام بايد هغه د خلکو د کسالت (سستيا) په خاطر پرنيږدي، که چېرې قاري په هر رکعت تراويح لمانځه کې لس آيتونه د قرآن کريم تـلاوت کـړي د روژې د مياشتې په اوړدو کې د قرآن کريم ختم پوره کيږي ځکه د تراويح د لمانځه رکعتونه په رمضان کې ٦٠٠ او يا ٥٨٠ دي او د قرآن کريم د آيتونو شمير هم ٦٠٠٠ او يا تردې ډير دی.
او ځينې په دې نظر دي چې د تراويح په هر رکعت کې د مابنام د لمانځه په اندازه قرائت بايد وويل شـي، ځکه کوم لمونځونه چې د فرضو څخه علاوه دي په هغه کې تخفيف مطلوب دی. او عمر رضـی الله عنـه دستور ورکړی ؤ چې په هر رکعت کې ديرش (٣٠) آيتونه ولولي څو د رمضان مبارکې مياشتې په اوږدو کې درې ختمونه وشي، ځکه هر لس ورځې ځانګړې فضليتونه او درجه لري.

ځيني وايي: د عمر رضی الله عنه وينا چې تر يو ځل زيات ختم وشي دا پر فضيلت محمـــول دی اوس دې د خلکو حالت ته په کتو سره د جومات امام تصميم ونيسي. هر کله چې اوس خلک ټنبل شوي کـــه زيـــات ختمونه وشي جماعت کميږي اود جماعت ډير والی د قرائت تر اوږدوالی غوره دی.
د رمضان په ۲۷ ورځ د قرآن شريف ختم د فقهاوو په نزد مستحب دی ( فتح القدير) په هر حال په تـــراويح کې بايد قرآن کريم په عجله ونه ويل شي او ځان ساتنه ور څخه ضروري ده.

**د تراويح لمانځه قضاء:**

که د تراويح لمونځ قضا شي او د سهار وخت داخل شو، نو راجح نظر دادی چې بيا يې قضـــايي نـــه راوړل کيږي او که څوک يې اداء کړي ورته نفل شميرل کيږي. اما په هر صورت بايد هله ځله وشي چې تـــراويح قضاء نشي او په دې هکله بايد مسلمانان زيات د احتياط نه کار واخلي ځکه ډير ثوابونه پرې تړلي دي او که ورڅخه قضاء شي دهغې قضاء د نفلو په نيت اداء کړي. (درالمختار)

نولسم لوست

# اعتكاف

**صفحه: ۳۷**

**وخت: دوه درسي ساعتونه.**

**د لوست موخې: زده کوونکي باید:**

- د اعتکاف معنا او مفهوم وپېژني.
- د اعتکاف په فضیلت وپوهیږي.
- د اعتکاف احکام او مسائل توضیح کړای شي.
- په اعتکاف چې کوم ثوابونه مرتب شوي په هغه عقیده ولري.

**اړینه پوهه**

**د اعتکاف حکمت:**

۱- **د قدر شپې موندل**:

۲-انسان په خپلې فطري غوښتنې سره کله غواړي چې د خلکو څخه گوښه شي او د خپل پروردگار سره مناجات او د هغه په عبادت مشغول شي نو له بلې خوا په محمدي شریعت کې کوښه نیونه مطلق منع ده. پیغمبرﷺ فرمایلي: زما د امت رهبانیت د الله جل جلاله په لار کې جهاد دی. اما اعتکاف په اسلام کې یوازې مشروع عبادت دی چې کولای شي د انسان داخلي غوښتنه پوره کړي. او دده د گوښه نیونې غریزه مړه کړي.

۳-اعتکاف په اسلام کې د انساني نفس د تزکیې او اصلاح لپآره بهترینه وسیله پېژندل شوې ده، په دې شرط چې مسلمانان هغه لازم او ضروري شرائط په نظر کې ونیسي.

٤-معتکف کولای شي په دې وخت کې له ځینو فرصتونو لکه د دعا قبولیت، زیات نفلونه اداء کول، د قرآن کریم تلاوت او توبې ایستلو کې ډېره گټه پورته کړي.

**د اعتکاف مشروعیت:**

د اعتکاف عمل لکه څنگه چې موږ وویل یو مشروع او په شرعي دلایلو ثابت عمل دی. د بیلگې په توگه الله تعالی فرمایي: :﴿ وَلَا تُبَاشِرُوهُنَّ وَأَنْتُم عَاكِفُونَ فِي الْمَسَاجِدِ﴾ .البقره: ۱۸۷.

ژباړه: او چې په جوماتونو کې مو اعتکاف کړی ؤ له ښځو سره مه یو ځای کیږئ.

او په یوه حدیث کې چې عائشې رضی الله عنها روایت کـــړی فرمـــایي: (أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَعْتَكِفُ الْعَشْرَ الْأَوَاخِرَ مِنْ رَمَضَانَ حَتَّى تَوَفَّاهُ اللَّهُ ثُمَّ اعْتَكَفَ أَزْوَاجُهُ مِنْ بَعْدِهِ).

ژباړه: پیغمبرﷺ تر دې چې له دنیا څخه یې رحلت وکړ د رمضان په لسو وروستیو شپو کې به اعتکاف کې کیناستلو او له ده وروسته یې پاکو بیبیانو اعتکاف کاوه. او همدارنګه اسلامی امت تر نن پورې د اعتکاف پر مشروعیت اتفاق لري.

او عقلاً هم لکه څنګه چې مونږ وویل: د انسان لپاره ضروري ده چې څه وخت ولوکه لـــږ هـــم وي د الله د عبادت او مناجات لپاره غوره کړي دا یو فطري کار دی.

**د اعتکاف فضیلت:**

د اعتکاف د فضیلت په هکله د احادیثو او د فقهاوو او علماوو څخه زیات فضیلتونه نقل شـــوي دي. امـــام حسین رضی الله عنه روایت کوي چې رسول اللهﷺوفرمایل: څوک چې د رمضان لس وروستۍ شپې اعتکاف وکړي الله تعالی هغه ته د دوه حجونو او دوه عمرو ثواب ورکوي. (الترغیب).

ابن عباس رضی الله عنه روایت کوي رسول اللهﷺوفرمایل: چې معتکلف له ټولو ګناهونو څخه ساتلی دی او هغه ته دومره ثواب ورکول کیږي چې ګواکي هغه د اعتکاف په حالت کې کومې نیکۍ چې (د اعتکاف نـــه مخکې تر سره کولې) هغه تر سره کوي. مشکوة

**د اعتکاف ډولونه:**

د احنافو په نزد اعتکاف په درې ډوله دی:

واجب اعتکاف

مسنون اعتکاف

مستحب اعتکاف

توضیح:

- واجب اعتکاف هغه دی چې انسان نذر کړی وي.
- سنت اعتکاف هغه دی چې د روژې په لسو وروستیو شپو کې اداء کیږي او د مراقی الفـــلاح خاونـــد د اعتکاف مکمل نوم: سنت مؤکد علی الکفایه ذکر کړی دی.
- مستحب اعتکاف هغه دی چې د هغه لپاره شرعاً وخت او اندازه نه وي ټاکل شوې که څو دقیقې وي هم انسان اعتکاف کولای شي، نو ځکه فقهاء وایي کله چې جومات ته د لمانځه د اداء کولو په خاطر داخـــل شوی نو د اعتکاف نیت هم ورسره وکړئ، الله تعالی د اعتکاف ثواب هم درکوي.

**د مسنون اعتکاف طریقه:**

د رمضان په ۲۰ تاریخ د عصر له لمانځه وروسته د لمر له ډوبیدو مخکې د الله جل جلا له د خوشحالۍ په خاطر د اعتکاف په نیت د رمضان په لسو وروستیو شپو کې به جومات ته داخلیږي او تر هغه چې د اختر

میاشت په رسمي او یقیني توگه ثابته شوه په جومات کې به پاتې کیږي او اعتکاف د اختر د میاشتې په لیدلو د لمر له ډوبیدو وروسته تمامیږي. (شامی)

**د اعتکاف لپاره غوره ځای کوم دی؟**

**د اعتکاف لپاره** غوره ځای بیت الله ده ، وروسته نبوي جومات دی، وروسته د اقصی جومات (بیت المقدس) ورپسې جامع جومات بیا د کلي جومات چې زیات لونځ کوونکي ولري. (بدائع).

**د اعتکاف آداب او مسئلې:**

۱-له عذر پرته له جومات څخه خارج نشي.

۲-د روژې په شلمه ورځ د لمر له ډوبیدو مخکې جومات ته داخل شي.

۳-د عید هلال په لیدلو له جومات څخه رخصت شي.

٤-د اعتکاف په حالت کې له جماع او د جماع له اسبابو او دواعیو څخه ځان وژغوري.

٥-په ذکر، دعاوو او نفلونو مشغول واوسي.

٦-د اعتکاف په حالت کې نیکې خبرې وکړي او له بدو خبرو ځان وساتي.

۷-مسنون ذکرونه ووایي.

۸-درود شریف ډیر زیات ووایي.

۹-تسبیح لمونځونه اداء کړي.

۱۰- د اشراق لمونځ اداء کړي.

۱۱- د سهار له لمانځه وروسته تر اشراق پورې او د مازدیگر له لمانځه وروسته تر ماښامه پورې په ذکر اذکار او تلاوت مشغول واوسي.

۱۲- د قدر په شپو ډیره هله ځله وکړي.

**د اعتکاف ځنې مفسدات:**

۱-معتکف پرته له شرعي او طبیعي ضرورته له جومات نه بیرون نشي.

۲-که معتکف داسې مریض شو چې په جومات کې پاتې کیدل ورته ستونزمن وو کورته تللی شی اعتکاف یې فاسد اما گنهگار نه دی.

۳-که معتکف په هېرې سره له جومات ووت اعتکاف یې فاسد ولی گنهگار نه دی (قاضی خان).

٤-که د معتکف روژه فاسده شوه، اعتکاف یې هم فاسدیږي. (بحر).

شلم لوست

# د فطر صدقه

**صفحه: ٣٩**

**وخت: دوه درسي ساعتونه.**

**د لوست موخې: زده کوونکي باید:**

١-د فطر د صدقې مفهوم وپيژني.

٢-د فطر د صدقې په احکامو او مسائلو وپوهيږي.

٣-د فطر د صدقې شرطونه بيان کړای شي.

٤-د فطر صدقې په واجب والي عقيده ولري.

**اړينه پوهه**

**د فطر صدقې مفهوم:**

د فطر صدقې ته زکات الفطر او فطره هم ويل کيږي. او فطر په اصل کې له همغه افطار څخه مشتق شـــوی دی او د رمضان د مبارکې مياشتې افطار د فطر د وجوب سبب کيږي نو ځکه ورته فطر ويل کيږي. او پـــه اصطلاح کې د هغه مالي مقدار څخه عبارت دی چې د روژې په پای کې د روژې د نواقصو د تلافی په توګه فقيرانو او مسکينانو ته ورکول کيږي.

**د فطر صدقې د مشروعيت تاريخ او دلايل:**

صدقه په دوهم هجري کال چې کله روژه فرض شوه د شعبان په مياشت کې مشـــروع وګرځيـــده او پـــر مشروعيت يې زيات دلايل شتون لري.

١-د پيغمبرﷺ حـــديث دی:( فَرَضَ رَسُولُ اللَّه صَلَّى اللَّهُ عَلَيْه وَسَلَّم زَكَاةَ الْفطْر صَاعًا منْ تَمْر أُو صَاعًا منْ شَعير عَلَى الْعَبْد وَالْحُرِّ وَالذَّكَر وَالْأُنْثَى وَالصَّغير وَالْكَبير منْ الْمُسْلمينَ وَأَمَر بها أَنْ تُؤَدَّى قَبْلَ خُرُوج النَّاس إلَى الصَّلَاة)

٢-ژباړه: رسول اللهﷺ د فطر صدقه پر خلکو مشروع وګرځوله چې يوه پيمانه له خرما يا يوه پيمانـــه لـــه اوربشو څخه پر آزاد او غلام، مذکر او مؤنث، پر واړه او لوی مسلمان باندې لازمي کړه او دا دستور يـــې ورکړ چې د عيد له لمانځه نه مخکې ورکړ شي.

١-٢- ابوسعيد خدری رضی الله عنه روايت کوي چې رسول اللهﷺ وفرمايل: (كُنَّا نُخْرِجُ زَكَاةَ الْفِطْرِ وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْه وَسَلَّم فِينَا عَنْ كُلِّ صَغِيرٍ وَكَبِيرٍ حُرٍّ وَمَمْلُوكٍ مِنْ ثَلَاثَةِ أَصْنَافٍ صَاعًا مِنْ تَمْرٍ صَاعًا مِنْ أَقِطٍ

صَاعًا مِنْ شَعِيرٍ فَلَمْ نَزَلْ نُخْرِجُهُ كَذَلِكَ حَتَّى كَانَ مُعَاوِيَةُ فَرَأَى أَنَّ مُدَّيْنِ مِنْ بُرٍّ تَعْدِلُ صَاعًا مِنْ تَمْرٍ قَالَ أَبُو سَعِيدٍ فَأَمَّا أَنَا فَلَا أَزَالُ أُخْرِجُهُ... )

**ژباړه: کله چې پیغمبرﷺ زمونږ په منځ کې حضور درلود موږ د فطر صدقه د هر وړوکي او لــوی آزاد او غلام څخه په دې ترتیب ورکوله: یوه پیمانه له خرما، یوه پیمانه له غنمو، یوه پیمانه له پنیر یا یوه پیمانـــه لـــه اوربشو څخه تر هغه پورې اداء کوله.**

**که څه هم ظاهراً حدیث پر دې دلالت کوي چې صدقه فطر د غنمو څخه هم یوه پیمانه وي اما پـــه نـــورو احادیثو کې راغلي چې د فقهاوو رحمهم الله په وړاندې د غنمو څخه نیمه پیمانه ده او ددې حدیث له ذکـــر کولو څخه زمونږ هدف د فطر د صدقې اندازه نده بلکې د مشروعیت د دلایلو توضیح یې ده.**

**د فطر صدقې د مشروعیت حکمت:**

**دا څو شیان کیدای شي:**

**۱. په فرضي روژه کې چې څه کمی شوی وي هغه پرې جبیره کیږي.**

**۲. په اسلامي ټولنه کې د فقر او بیوزلۍ څخه مخنیوي کیږي.**

**۳. څو ټول مسلمانان فقیر وي او که بډای د خوراک او پوښاک توکي ولري.**

**۴. څو ټول مسلمانان د عید خوشحالیو کې برخه واخلي.**

**د فطر صدقې حکم:**

**جمهور فقهاء په دې عقیده دي چې صدقه فطر پر هر مسلمان واجب ده.**

**د فطر صدقې ځینې مسئلې او احکام:**

**۱. د فطر صدقه د اختر ورځې د صبح صادق په راختلو واجبیږي نو څوک چې د اختر ورځې له صبح صادق څخه وروسته دنیا ته راشي صدقه پرې واجب ده او څوک چې د صبح صادق له راختلو مخکې مړ شو صدقه پرې واجب نده.**

**۲. د فطر صدقه باید د اختر له لمانځه څخه مخکې ورکړ شي. اما که وروسته له اختره یا د رمضان په تـــرځ کې ورکړای شي هم صحیح ده.**

**۳. هغه کسان چې د زکات وړ وي د صدقې فطر هم وړ دی او به چا چې زکات نه صحیح کیږي صدقه فطر هم پرې نده صحیح.**

**۴. په فطر صدقه کې هم باید تملیک رامنځ ته شي.**

**۵. هغه څه چې په صدقه فطر کې ورکول کیږي څلور شیان دي: غنم، اوربشې، خرما او ممیز، البته له غنمو څخه نیمه پیمانه او له اوربشو، خرما او ممیزو څخه یوه پیمانه.**

یوویشتم لوست

# زکات

صفحه: ۴۱

وخت:یو درسي ساعت

**د لوست موخې: زده کوونکي باید:**

- د زکات معنی او مفهوم وپیژني.
- د زکات احکام او مسائل زده کړي.
- د زکات فلسفه توضیح کړای شي.
- د زکات په فرضیت عقیده ولري.

**اړینه پوهه**

**د زکات تعریف:**

په عربي ژبه کې د زکات اطلاق په مختلفو معناګانو کیدای شي لکه نمو( وده) پاکي او سپیڅلتیا.
قرآن کریم فرمايي: ﴿خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَكِّيهِم بِهَا وَصَلِّ عَلَيْهِمْ إِنَّ صَلاَتَكَ سَكَنٌ لَّهُمْ وَاللّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ...﴾ التوبه: ۱۰۳.

ژباړه: د هغوی له مالونونه زکات او خیرات واخله او په دې توګه یې له ګناهونو پاک او کړنې یې سپڅلې او غوره کړه. او دعا ورته وکړه . بې شکه چې ستا دعا هغوی ته ډاډ ور ښښي الله تعالی ښه اوریدونکی په هر څه ښه عالم دی.

څرګنده ده چې د زکات په اداء کولو سره پاتې مال زیاتیږي خو دا زیاتوالی کله په ظاهري توګه په مال کې لیده کیږي او کله په معنوي توګه یعنې د مال برکت ډیریږي او په لږ مال سره لوی لوی کارونه تـــر ســـره کیږي او همدارنګه د غلو له شر او نورو مصیبتونو څخه ساتل کیږي او همدارنګه د معنوي لحاظه د آخرت لپاره هم ذخیره کیږي.

او انسان هم د زکات په ورکولو د رواني او معنوي لحاظه پاکیږي او د مادیاتو مینه یې له زړه څخه وځي.او زکات په اصطلاح کې فقیر ته د الله د رضا په خاطر د مال تملیک دی خو چې هاشمي نـــه وي. او پـــه دې شرط چې نور د ذکر شوي مال څخه ګټه وانخلي. ( بحرالرائق).

**په اسلام کې د زکات نظام:**

زکات یوه مالي او عبادتي فریضه ده چې د ټولو انبیاوو په شرائعو کې یې شتون درلود او د شریعت جزء یې ؤ او د یو دیني مهم کار په توګه یې عمل پرې کاوه، البته د یادولو وړ ده چې د اسلام نه مخکـــې، د زکـــات نصاب، اندازه او د زکات مصارف داسې وو چې د محمدي شریعت سره یې توپیر درلود.

**د ټکس ( مالیاتو) د نظام سره د زکات توپیر:**

په حقیقت کې زکات لوی حکمتونه لري چې ځنې یې په اسلامي منابعو کې یاد شوي دي او دا رابنیي چې اسلامي زکات د ټکس یا هغه مالیاتي نظام سره چې په اوسنیو نظامونو کې معمول دي تشبیه نکړو ځکه زکات دوه اساسي هدفونه لري: یو د زکات ورکوونکي پاکي ده له گناه، د مادیاتو له مینې او نفس غوښتنو څخه او دوهم هدف یې د مسکینانو سره مالي مرسته ده لکه یتیمان، کونډې، معیوبین او معذورین.

او په مبارک آیت کې راغلي دي چې ﴿خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَكِّيهِمْ بِهَا﴾.

ژباړه: اې پیغمبره ته د هغوی له مالونو څخه د صدقې تر اخستلو سره هغوی پاک کړه.

اولي هدف ته اشاره کوي او په دوهم آیت کې راغلي دي چې: (اَلصَّدَقَاتُ لِلفُقَـرَاء...) دوهم هدف او فلسفې ته اشاره کوي حال دا چې د اوسنۍ زمانې په مروج مالیاتي نظام کې داسې اهداف او فلسفه نه لیدل کیږي.

**زکات څه وخت فرض کیږي:**

د زکات د فرضیت شرطونه دوه ډوله دي: ځنې شرطونه په زکات ورکوونکي پورې اړه لري او ځنې نور په زکاتي مال پورې.

**د زکات ورکوونکي شرطونه:**

۱-زکات ورکوونکی باید مسلمان وي، نو پر کافر واجب نه دی ځکه زکات عبادت دی او کفار په عبادتونو مکلف نه دي بلکې دوی په ایمان راوړلو مکلف دي. همدارنگه زکات پر مرتد لازم نه دی که څه هم پر مال یې یو کال تیر شوی وي او هغه د ارتداد په حال کې وي.

۲-زکات ورکوونکی باید بالغ وي، نو زکات پر هلک او نابالغو وگړو واجب نه دی او دا نظر له علی او ابن عباس رضی الله عنهما څخه منقول دی، ځکه زکات عبادت دی او نا بالغ په عبادت مکلف نه دی لکه څنگه چې لمونځ او روژه پرې فرض نه دي. او دا چې زکات مالي عبادت دی نو د هلک ولي کولای شي د هغه له لوري تصرف وکړي او د هغو د مال زکات ورکړي.

۳-عقل یعنې زکات ورکوونکی به عاقل وي نو پر لیوني واجب نه دی ځکه هغه هم په عبادت مکلف نه دی. لیونی په دوه ډوله دی: یو اصلي یا حقیقي لیونتوب دی هغه دا چې له بلوغ نه مخکې لیونی وي او د لیونتوب په حال کې بالغ شوی وي، په دې لیوني زکات نه دی واجب او که له بلوغ څخه وروسته جوړ شي بیا زکات پرې واجبیږي اما هغه کلونه چې په لیونتوب پرې تیر شوي هغه معاف دي او زکات له صحت څخه پیلیږي. دوهم ډول لیونتوب دادی که چیرې دا حالت یو کال یا زیات ادامه ومومي نو د اولي ډول حکم ځان ته نیسي او که له یو کال څخه کم وي نو زکات پرې واجب دی.

۴-زکات ورکوونکی د نصاب مالک وي چې نصاب ته مال نه وي رسیدلی په هغه کې زکات نه واجبیږي.

**د زکات په مال پورې اړوند شرطونه:**

۱-تام ملکیت: یعنی هغه مال او پانګه چې زکات ور څخه ورکول کیږي د هغه شخص تر کنترول او تصرف لاندې وي او که په اختیار کې یې نه وي مثلاً مال ورک شوی وي، مصادره شوی وي، غصب شوی وي نو زکات پرې فرض نه دی.

۲-د زکات مال له قرض څخه فارغ وي، یعنی دومره قرض نه وي پرې که په قرض کې ورکړ شي نور مال له نصاب څخه کم شي. نو بیا هم زکات پرې نشته.

۳-د نصاب مال د ده له اصلي حاجت څخه زیات وي او مراد له اصلي اړتیاوو څخه کور، لباس، د سوارۍ آله، غذا او داسې نور دي.

۴-کال پرې تیر شوی وي.

**د زکات د اداء شرطونه:**

۱-نیت: هر کله چې زکات عبادت دی نو نیت پکې ضرور دی.

۲-اسلام: غیر مسلم د زکات په ورکولو مکلف نه دی.

۳-فوري اداء: باید په اداء کې یې تأخیر ونکړي دا مفتي به قول دی.

۴-تملیک: یعنی زکات مسکینانو ته په داسې توګه ورکړ شي چې هغه یې مالک جوړ شي.

دوه ویشتم لوست

# د زکات نصاب

**صفحه: ۴۳**

**وخت: یو درسي ساعت**

**د لوست موخې: زده کوونکي باید:**

۱-د زکات نصاب وپیژني.

۲-وپوهیږي څو د زکات نصاب تکمیل نه وي زکات نه فرض کیږي.

۳-د زکات نصاب نورو ته بیان کړای شي.

۴-د زکات په نصاب عقیده ولري.

**اړینه پوهه**

**د زکات د نصاب موخه:**

نصاب په عربي لغت کې د اصل په معنا دی او نصاب الزکاة یعنی د زکات د وجوب لپاره د معین مال اندازه. چې د بشپړیدو په صورت کې زکات فرض کیږي. او په شرعي اصطلاح کې نصاب عبادت له هغه مقدار پانګې څخه دی چې په کم کې یې زکات نه واجبیږي. ( قواعد الفقه للبرکتی) او د زکات په بحث کې د زکات د هر مال نصاب د بل مال او پانګې سره فرق لري چې وروسته به بیان شي.

**هغه مالونه چې زکات پرې واجبیږي په دې ډول دي:**

۱-حیوانات (وزه، پسه، غویي، ګامیښه، اوښ) او نور.

۲-طلا او نقره.

۳-تجارتي مالونه.

٤-معدنونه او خزانې.

۵-کښت او میوې.

**د زکات د فرضیت مرحلې:**

په دې کې شک نشته چې د حضرت محمدﷺ له پیغمبرۍ مخکې د نورو الهي پیغمبرانو په دعوتي پروګرامونو کې چې د بشریت په لوري یې لیږلی وو، زکات شتون درلود لکه چې یو قرآنی آیت دا مسئله داسې تمثیلوي::﴿ وَجَعَلْنَاهُمْ أَئِمَّةً يَهْدُونَ بِأَمْرِنَا وَأَوْحَيْنَا إِلَيْهِمْ فِعْلَ الْخَيْرَاتِ وَإِقَامَ الصَّلَاةِ وَإِيتَاءِ الزَّكَاةِ وَكَانُوا لَنَا عَابِدِينَ﴾. الانبیاء: ۷۳.

ژباړه:او ټول مو مخ کښان ګرځولي وو چې زموږ په امر به یې ښوونه کوله او د وحې په واسطه مو د غوره کارونو، د لمانځه ودرولو او زکات ورکولو هدایت ورکړ او هغوی زموږ عبادت کوونکي وو.

البته د هغه وخت د زكات كيفيت او څرنګوالی د اوسني شريعت سره تفاوت لري اما نفس زكـــات چـــې د فقيرانو لاس نيوی او خپلو همجنسو سره مرسته ده په هغه زمانه كې هم دود او رواج درلود.

**په اسلام كې د زكات د مشروعيت تاريخ په هكله نظريات**

په محمدي شريعت كې د زكات د مشروعيت په موضوع كې فقهاء رحمهم الله دوه نظرونه لري.

اول نظر: دا چې زكات په مكه كې فرض شوی ؤ او هغه آيتونه چې په مكه كې نازل شوي او د زكات كلمه پكـــې كـــارول شـــوې ده لكـــه : ﴿فَلَااقْتَحَمَالْعَقَبَةَ *وَمَاأَدْرَاكَمَاالْعَقَبَةُ *فَكُّرَقَبَةٍ *أَوْإِطْعَامٌفِييَوْمٍذِيمَسْغَبَةٍ * يَتِيماًذَامَقْرَبَةٍ*أَوْمِسْكِيناًذَامَتْرَبَةٍ﴾.البلد: ۱۲ـ ۱۶.

ژباړه: لوړې ژورې يې سر نه كړې، او ته څه پوهېږې چې د لوړو او ژورو سر كـــول څـــه دي؟ د غـــاړې ازادول، يا د لوږې په ورځ خوراک وركول، خپلوان يتيم ته.

او همدارنګه ددې آيتونو په بنسټ ﴿فَأَمَّا الْيَتِيمَ فَلَا تَقْهَرْ (۹) وَأَمَّا السَّائِلَ فَلَا تَنْهَرْ﴾. الضحی: ۹. ۱۰.

ژباړه:نو په يتيم قهر مه كوه، او سوال كوونكی مه رټه.

همدارنګه د معارج سورت د **۲۴** آيت په بنسټ او دا چې جعفر رضی الله عنه په حبشه كې د نجاشـــي پـــه وړاندې مطرح كړ او ويې فرمايل: (وَيَأْمُرُنَابِالصَّلَاةِوَالزَّكَاةِ).يعنی موږ ته په لمانځه او زكات وركولو امر كوي.

په دې آيتونو پوهان استدلال كوي چې زكات په مكي دور كې فرض شوی ؤ.

دوهم نظر: دا چې زكات په مدني دور كې فرض شوی دی او دا نظر راجح دی چې زكات په دوهم هجري كال د شوال په مياشت كې په مدينه منوره كې فرض شوی او هغه آيتونه چې په مكي دوركې مشاهده شول، هغه د فرض په عنوان نه بلكې هغه د بيوزلانو سره مرسته او لاس نيوی ؤ.

او په حقيقت كې مكي ژوند د يو بل ژوندانه د پيل لپاره يو تمرين ؤ له دې كبله مســـلمانانو تـــه د زكـــات وركولو امر د يو مستحب امر په عنوان وركړی شوی ؤ څو د راتلونكې لپاره د الهي فريضې په توګـــه او د اسلام د مهم ركن په توګه خلک ورته چمتو او تمرين شي.

ابن حجر عسقلاني هم په دې باور دی چې هغه په مكه كې زكات ورته ويل كيده د هغه نصاب د مدينې پـــه څير نه ؤ او د امام جعفر په واقعه كې چې د زكات نوم يې اخيستی هغه روژه هم ياده كړې ده حال دا چـــې روژه د فقهاوو په اتفاق په مدينه منوره كې فرض شوې ده. همدارنګه په يوه حديث كې راغلي:

(أَمَرَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّم بِصَدَقَةِ الْفِطْرِ قَبْلَ أَنْ تَنْزِلَ الزَّكَاةُ فَلَمَّا نَزَلَتْ الزَّكَاةُ لَمْ يَأْمُرْنَا وَلَمْ يَنْهَنَا وَنَحْنُ نَفْعَلُه).

ژباړه: رسول الله ﷺ د زكات له فرضيت مخكې موږ ته په صدقه فطر امر كړی ؤ، كله چې زكات نازل شـــو نور يې نه موږ ته په صدقه فطر ادا كولو امر كړی او نه يې نهي كړيده او موږ هغه انجامولو.

**د زکات د اداء کولو ارزښت:**

د زکات اداء کول د مسلمانانو یو ایماني او اسلامي مسؤلیت دی چې د توان په صورت ( نصاب) کې د هغه اداء کولو ته اقدام وکړي او مسلمان نباید د هغه په اداء کولو کې له پلمې څخه کار واخلي چې دا قضیه د یو مسلمان ایمان امتحان او ارزونې ته کشوي. او زکات د اسلام یو رکن دی او د زکات په ور کولو کې دا ښېګڼې شتون لري:

۱-د اسلام په مهم رکن عمل.

۲-د مسلمان د ایماني قوت د ځلیدو څخه نمایندګي کوي.

۳-زکات د ټولو صدقاتو څخه بهتري لري او پروردګار ته د انسان د نزدیکت لامل دی.

۴-زکات ورکول په حقیقت کې د نفس غوښتنې او مادیات لمانځنې سره مبارزه ده.

در ویشتم لوست

# د غلو دانو او مېوو زکات

**صفحه: ۴۷**

**وخت: یو درسي ساعت.**

**د لوست موخې: زده کوونکي باید:**

- د غلو دانو او میوو د زکات اندازه وپیژني.
- وپوهیږي چې په کومو غلو دانو کې په څه اندازه زکات فرض دی.
- د عشر د فرضیت لپاره د قرآن او حدیث څخه دلایل بیان کړای شي.
- د عشر په فرضیت باور ولري.

**اړینه پوهه**

**د عشر فرضیت:**

د غلو دانو، کښتونو او میوو عشر یا زکات فرضیت په قرآن، حدیث، اجماع او قیاس سره ثابت دی.

۱-قرآن کریم په دې هکله فرمایي::﴿ وَآتُواْ حَقَّهُ يَوْمَ حَصَادِهِ﴾ ژباړه: مفسرین په دې نظر دي چې د حق نه هدف په آیت کې عشر دی.

۲-د حدیث نه هم ثابتیږي رسول الله ﷺ فرمایلي دي: هغه ځمکه چې د باران د اوبو په وسیله خړوبه کیږي په هغه لسمه برخه (عشر) دی او هغه ځمکه چې د څاه او ویالې په واسطه اوبه کیږي په هغه کې نیم عشـــر یعنی شلمه برخه ده.

۳-اسلامي امت د اسلام له پیل نه تر نن ورځې پورې د عشر پر فرضیت اجماع کړیده.

عشري ځمکه: د هغې ځمکې څخه عبارت ده چې مسلمانان هغه د کافرانو څخه په زور او قدرت نیولې وي او بیا یې د مسلمانانو په منځ کې ویشلې وي او یا د هغه ځمکې اوسیدونکو په خپله خوښه اسلام قبول کړی وي.

خراجي ځمکه: هغه ځمکه ده چې مسلمانانو د کافرانو په یوه ځمکه غلبه موندلې وي او بیا یې همغو خلکـــو ته پرېښې وي او له هغه څخه جزیه اخلي.

**د عشر د فرضیت لامل:**

د عشر سبب په حقیقت کې هغه ځمکه ده چې د حاصلاتو څخه یې حقیقتاً استفاده وشي، په خلاف د خراجي ځمکې چې د هغې د حاصلاتو نه استفاده حقیقتاً ضروري نده، نو که په خراجي ځمکه کې د کښت قدرت ؤ اما په هغه کې یې څه ونه کرل، خراج ورباندې لازمیږي اما که کښت ته څه آفت ورسیږي او څه لاس تـــه رانشي نو نه عشر پرې فرض دی او نه خراج (بحرالرائق).

**د عشر د وجوب شرطونه:**

**د عشر د وجوب شرطونه دوه ډوله دي:**

اول ډول: اهليت يعنى عشر ورکوونکى به اهليت لري او د اهليت شرط بيا په دوه ډوله دى:

۱-مسلمان به وي، د اسلامي علماوو په اتفاق عشر پر کافر فرض نه دى.

۲-د عشر په فرضيت به علم لري او دا شرط عمومي جنبه لري په ټولو عباداتو کې علم درلودل شرط گڼل شوي دي او د عشر د وجوب لپاره عقل او بلوغ شرط نه دى، ځکه عشر د ځمکې اجوره ده نو په ليوني هم عشر واجب دى.

۳-دوهم ډول د وجوب شرط د عشر د محل موجوديت دى يعنى ځمکه به عشري وي نه خراجي.

څلير ویشتم لوست

# د حیواناتو زکات

**صفحه: ۴۹**

**وخت: یو درسي ساعت.**

**د لوست موخې: زده کوونکي باید:**

- هغه حیوانات چې زکات پکې فرض دی وپیژني.
- د حیواناتو د زکات د نصاب په شرعي اندازه وپوهیږي.
- د حیواناتو د زکات په هکله نورو ته توضیح ورکړای شي.
- د حیواناتو د زکات په فرضیت هم باور ولري.

**اړینه پوهه**

**د مسئلې توضیح:**

امام محمد او هغه فقهاء چې له ده څخه وروسته دي د حیواناتو د زکات په هکله ((سائمه)) اصطلاح کاروي یعنې څریدونکي حیوانات او دلیل یې هغه خطونه دي چې د رسول الله ﷺ څه په دې هکله پاتې دي او ددې اصطلاح معنا دارنګه ده:

۱-د لغوي معنا له حیثه سائمه لفظ: څریدونکي حیوان ته ویل کیږي، یوه ډله په دې نظر دي چې سائمه هغه اوښ دی چې څر ځای ته بوتلل شي او د هغې له ګیاوو څخه استفاده کوي او په کور کې ورته ګیاه نه ورکول کیږي.

۲-**د سائمه اصطلاح فقهي معنا:** هغه حیوان دی چې د کال ډیره برخه په څر ځای کې تیروي او د هغه له ګیاوو ګټه اخلي. او پر مالک هیڅ ډول مالي تکلیف او تاوان رانه وړي. او کوم حیوان چې له مباح ګیاه څخه استفاده نه کوي. هغه ته سائمه نه ویل کیږي.

۳-د هغې د ساتلو نه به مقصد شیدې او نسل وي که غوښه ورڅخه مقصد وه یا سپرلي بیا ورته سائمه نه ویل کیږي. او په هغه کې زکات هم نشته.

**هغه حیوانات چې زکات پکې واجب نه دی:**

۱-پر آسونو زکات واجب نه دی: صاحبین وایي چې په اسونو کې زکات واجب نه دی او همدا نظر د فتوی لپاره غوره دی. اما که اسونه د تجارت لپاره وو په هغو کې زکات شته. ځکه په دې صورت کې د تجارت مال دی او د تجارت حکم اخلي برابره ده په کور کې ګیاه خوري یا په بیدیا کې.

۲-په خر او قچر کې هم زکات نشته. اما که چیرې د تجارت لپاره وي او قیمت یې د نصاب حد ته ورسیږي بیا زکات پرې شته.

۳-د سائمه حیواناتو په بچیانو کې هم زکات نشته برابره ده د اوښ جونګی وي یا د غویي یا هم د میږې او وزې بچیان.

۴-په هر هغه حیواناتو کې چې د سپرلۍ لپاره وي یا بار نقلوي او یا په کور کې ګیاه خوري په هغو کې هـــم زکات نشته، ځکه په حدیث کې راغلي چې " عوامل وعلوفه" یعنی کار کوونکو، بار وړونکو او کور کـــې ګیاه خوړونکو حیواناتو باندې زکات نشته.

پنځه ویشتم لوست

# د زکات مصارف

**صفحه: ۵۱**

**وخت: یو درسي ساعت.**

**د لوست موخې: زده کوونکي باید:**

- د زکات مصارف ( د زکات مستحقین) وپیژني.
- وپوهیږي چې څوک د زکات مستحق نه دی زکات نه ورکول کیږي.
- د مؤلفة القلوب[1] په هکله معلومات ورکړی شي.
- په دې عقیده ولري چې د زکات مصارف ( مستحقین) په قرآن ثابت دي.

**اړینه پوهه**

**د زکات ورکولو مستحق څوک دي؟**

**﴿إِنَّمَا الصَّدَقَاتُ لِلْفُقَرَاء وَالْمَسَاكِينِ وَالْعَامِلِينَ عَلَيْهَا وَالْمُؤَلَّفَةِ قُلُوبُهُمْ وَفِي الرِّقَابِ وَالْغَارِمِينَ وَفِي سَبِيلِ اللّهِ وَابْنِ السَّبِيلِ فَرِيضَةً مِّنَ اللّهِ وَاللّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ﴾. التوبة: ۶۰.**

ژباړه:زکاتونه یوازې او یوازې د فقیرانو، مسکینانو، زکات راټولوونکو، مؤلفة القلوب، د غاړو ازادولو، پوره وړو، د الله تعالی په لیار کې او مسافرو لپاره د الله تعالی له لوري ټاکلي شوي دی. او الله تعالی په هرڅه پوه او د حکمت څښتن دی.

**۱- فقیر او مسکین:**

فقهاء کرام ددې دوه اصطلاح ګانو یعنی فقیر او مسکین د تعریف په هکله داسې نظر لري:

که د فقیر او مسکین لفظونه په جلا او مستقله توګه ذکر شي نو د یو او بل په معنا کارول کیږي اما که دواړه لفظونه په یو کلام کې جمع شي په دې صورت کې حنفي فقهاء وایي چې: فقیر هغه دی چې پانګه یې لږ وي یعنی په داسې حال کې چې مال یې نمو ( وده) کوونکی او له قرض څخه خالي وي، خو د نصاب حد ته نـــه رسیږي او یا یې مال نمو کوونکی او له قرض څخه خالي وي خو د نصاب حد ته هم رسیږي اما د ژوندانه له ضروریاتو څخه یې وي لکه د اوسیدنې کور، د سپرلۍ موټر او داسې نور نو هغه ته د سوال او درویزې کولو اجازه نشته.

**۲- مسکین:**

مسکین هغه دی چې هیڅ پانګه او مال ونه لري ان تر دې چې د بدن پوښلو لپاره هم څه ونلري نو هغه تـــه درویزه روا ده اما هغه څوک چې خپل بدن پوښلی شي هغه ته درویزه روا نده.

---

[1] مؤلفة القلوب: له دې څخه هغه خلک مراد دي چې رسول الله ﷺ غوښتل د زکات په واسطه یې زړونه اسلام ته مایل شي.

**۳-عامل:** عامل هغه شخص ته ویل کیږي چې امام یا حاکم د زکات او عشر د جمع کولو لپاره ټاکلی وي د عامل لفظ عام دی لاندې دوه ډلو ته شاملیږي:

- **ساعي:** ساعي هغه دی چې د حیواناتو د زکات جمع کولو په هدف ټاکل شوی وي.
- عاشر: هغه دی چې د غلو دانو د عشر جمع کولو لپاره د امام یا حاکم له لوري ټاکل کیږي او دې کسانو ته د زکات له مال نه دومره ورکول کیږي چې خپل مصارف په اوسطه توګه د سفر او تلو راتلو لپاره یې کفایت وکړي.

**۴-رقاب ( غلام):**

د زکات څلورم مصرف رقاب یعنی د هغه غلام د آزادۍ لپاره چې دده او بادار تر منځ یې د مکاتبت تړون شوی وي او هغه د خپلې آزادۍ لپاره پیسې پیدا کوي نو هغه ته د زکات له مالونو څخه ورکړه روا ده.

او غلام د آیت د اطلاق پر اساس عام دی لوی او کوچني دواړو ته شاملیږي. اما که مکاتب هاشمی وي هغه ته زکات ورکول صحیح نه دي.

**۵-غارم ( قرضدار):** د زکات د مصارفو یو بل تن قرضدار (مدیون) دی که دا مدیون دومره څه نلري چې خپل قرض پرې خلاص کړي نو ده ته د زکات له روپیو ورکول روا دي. اما د یادولو وړ ده چې په مبارک آیت کې د غارم لفظ د زکات د مصرف علت نه دی بلکې د زکات د مصرف علت فقر دی. که هغه بډای قرضدار وي زکات نه ورکول کیږي. همدارنګه د یادولو وړ ده غارم چې هاشمي یا سادات نه وي.

۶-فی سبیل الله: شپږم د زکات مصرف ( مستحق) فی سبیل الله دی یعنی هغه کسان چې د الله تعالی په لار کې د خیر او نیکۍ په کارونو بوخت وي.

**توضیح:**

په آیت کې د فی سبیل الله څخه موخه کوم کسان دي، په دې مسئله کې د فقهاوو په منځ کې کومې متفاوتې نظریې لیدل کیږي د بیلګې په توګه: امام ابو یوسف په دې نظر دی چې د فی سبیل الله نه مراد هغه کسان دي چې د فقر او تنګ لاسۍ له کبله د جهاد له کاروان څخه وروسته پاتې وي دوی ته دې د زکات مال ورکړی شي.

امام محمد په دې باور دی چې مراد ترې هغه کسان دي چې د بیت الله د حجاجو له قافلې څخه وروسته پاتې دي.

او مالي توان او قدرت یې په داسې کچه ضعیف وي چې نشي کولای مناسکو ته ادامه ورکړي.

او د البدائع مؤلف وایي: فی سبیل الله لفظ عام دی ټولو د خیر او ښیګڼو ځایونو ته شاملیږي اما د احنافو په نزد د زکات د شرطونو څخه یو شرط د تملیک مسئله ده یعنی باید پیسې هغه چاته ورکړل شي چې هغه د هغه په تملک قادر وي. او هر څوک چې د تملک قدرت نلري د زکات مستحق هم نشي کیدای، نو له دې کبله د مړي په تکفین او تجهیز او د جوماتونو په آبادولو کې ورڅخه استفاده نشي کیدای.

**۷- ابن السبیل (یعنی مسافر).**

اووم د زکات مصرف ابن سبیل دی، مراد ورڅخه هغه مسافر دی چې د خپل کور او کلی نه لرې پــاتې وي او مالی قدرت ونه لري او کمک ته اړ وي. او دې کسانو ته ابن سبیل ځکه وایي چې هغه د لارې سره ملازم دی او د لارې سره اړیکې لریږ د یادولو وړ ده که مسافر په خپل وطن کې هر څومره مالي قدرت هم ولري خو په سفر کې چې سفریه ور سره نه وي د زکات ورکولو مستحق دی.

شپږ ویشتم او اووه ویشتم لوست

# حج او مسایل یې

**صفحه: ۵۳**

**وخت: دوه درسي ساعتونه.**

**د لوست موخې: زده کوونکي باید:**

- د حج معنا او مفهوم وپیژني.
- د حج په سبب او شرطونو وپوهیږي.
- د حج د فرضیت لپاره له قرآن او حدیث څخه دلیل وړاندې کړای شي.
- د حج په فرضیت عقیده ولري.

**اړینه پوهه**

**د حج د اصطلاح څېړنه:**

د حج لفظ په دوه طریقو ویل کیږي یو د (حَ) په فتحه نو په دې صورت کې حج اسم دی. دوهم د (ح) په کسرې په دې صورت کې مصدر دی یعنی حج کول. حج په لغت کې قصد ته ویل کیږي چې د عظمت په صفت ستایلی وي یعنی حج د لوی قصد په معنی دی او یو شمیر فقهاوو حج په دې طریقه معنا کړی دی.

**د حج سبب:**

په اسلامي فقه کې یوه مسئله د اعمالو د سبب یا د اعمالو د وجوب اسبابو په عنوان مطرح ده. او حج هم د لویو اسلامی عباداتو څخه یو عبادت دی، نو سبب یې هم باید روښانه شي نو د حج د سبب په هکله ویل شوي چې د حج سبب بیت الله الحرام دی، هر کله چې په نصوصو کې د حج لفظ د بیت الله په لوري نسبت ورکړی شوی لکه حج البیت او قاعده ده چې احکام د اسبابو په لوري مضاف کیږي لکه اصول الفقه نو د بیت الله په لوري د حج د اضافت غوښتنه همدا ده چې بیت الله د حج د وجوب سبب وي او په همدې وجه حج په مسلمان په ټول عمر کې یو ځل فرضیږي ځکه چې بیت الله یوه ده.

**د حج فرضیت:**

حج د اسلام پنځم لوی رکن او ډیر لوی عبادت دی او ټولو الهي پیغمبرانو د آدم علیه اسلام څخه تر خاتم النبیین ﷺ پورې د حج فریضه اداء کړې ده او په دې بحث کې درې موضوع ګانې توضیح کیږي:

اول: په قرآن، سنت او اجماع کې د حج د فرضیت دلایل:

په دې کې هیڅ شک او شبهه نشته چې حج هم د نورو عبادتونو په شان لکه لمونځ، روژه او نور فرض عین دی او فرضیت یې په قطعی دلایلو ثابت دی.

له قرآنکریم څخه: ﴿وَلِلّهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلاً وَمَن كَفَرَ فَإِنَّ الله غَنِيٌّ عَنِ الْعَالَمِينَ﴾ آل عمران: ۹۷.

ژباړه:د الله تعالی له لوري، پر هغو خلکو د دې خونې حج فرض شوی دی چې د لارې توان ور سره وي. او چا چې انکار کړی دی نو باید پوه شي چې الله تعالی له ټولو خلکو څخه بې پروا دی.
د ذکر شوي آیت نه د حج پر فرضیت علماوو دارنګه استدال کړی دی:
الف: د (علی) لفظ د شي د ایجاب لپاره استمعالیږي.
ب: و (من کفر) لفظ هم پردې مسئله روښانه دلیل دی، اما یو شمیر علماء وایي چې (و اتموا الحج و العمرة لله ) آیت د حج د فرضیت په باره کې نازل شوی اما راجح داده چې هغه پاسنی آیت د حج د فرضیت په هکله نازل شوی دی.
ج: په پاسني مبارک آیت کې لومړی د (الناس) لفظ او بیا د (من) لفظ وروپسې راوړل شوی چې د دوه وجونه د تاکید څرګندوونکی دی یو دا چې الناس لفظ په (من) تبدیل شوی.
دوهم دا چې په آیت کې له اجمال وروسته تفصیل او له ابهام وروسته توضیح شتون لري.
په مبارک آیت کې الله تعالی خپله استغنا او بې احتیاجي بیان کړې ده چې په واقعیت کې د حج پرېښودونکي ته بی حده خپل قهر او غصه ورښیي.
**۲: د حج فرضیت په احادیثو کې**:( إِنَّ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ قَدْ فَرَضَ عَلَيْكُمْ الْحَجَّ فَحُجُّوا)
ژباړه: پرته له شکه الله حج پر تاسو فرض کړی نو حج اداء کړئ.
(بُنِي الْإِسْلَامُ عَلَى خَمْسٍ... وَالْحَجِّ) یعنی اسلام پر پنځو ستنو ولاړ دی چې یو له هغو څخه د بیت الله الحرام حج دی.
**۳- د اسلامي امت په اجماع د حج فرضیت:** د اسلام له پیل څخه تر نن ورځې پورې ټول امت د حج د فرضیت په هکله پر دې متفق دی چې حج فرض عین دی.
**۴- د عقل له مخې:** د عقل له مخې هم مسئله کاملاً واضح ده ځکه ټول عبادتونه چې په محمدي شریعت کې راغلي دوه بنسټیزې موخې لري:
۱- الله تعالی ته د بندګی، عاجزی او ذلت څرګندوالی.
۲- د الهی نعمتونو د شکر ایستلو اظهار، دا دواړه موخې د حج په عبادت کې هم لیده کیږي او شتون لري.
دوهم د حج فضیلتونه:
د حج د فضیلتونو او مقام په باره کې ډیر آیتونه او حدیثونه راغلي دي چې دلته یوه برخه ورڅخه ذکر کوو:
﴿وَأَذِّن فِي النَّاسِ بِالْحَجِّ يَأْتُوكَ رِجَالاً وَعَلَى كُلِّ ضَامِرٍ يَأْتِينَ مِن كُلِّ فَجٍّ عَمِيقٍ﴾ الحج: ۲۷
ژباړه:او خلکو ته د حج په لور یوه عامه بلنه ورکړه چې هغوی تا ته پلي،. او پر ستړو ستومانو اوښانو سپاره له لرې نه راشي.
**۲- په حدیث کې راغلی دي:** (م مَنْ حَجَّ فَلَمْ يَرفُثْ وَلَمْ يَفْسُقْ رَجَعَ كَهَيْئَتِهِ يَوْمَ وَلَدَتْهُ أُمُّهُ).
ژباړه: چاچې په داسې حال کې حج اداء کړ چې جماع او ګناه یې ونکړه په داسې حالت به له حج څخه راستون شي لکه مور چې زیږولی ؤ.

۳– رسول الله ﷺ فرمايلي دي: (الْحَجُّ الْمَبْرُورُ لَيْسَ لَهُ جَزَاءٌ إِلا الْجَنَّةَ) يعنې د مقبول حج بدله يوازې جنت دی.

۴– رسول الله ﷺ فرمايلی دي:(ا الْحُجَّاجُ وَالْعُمَّارُ وَفْدُ اللَّهِ إِنْ دَعَوْهُ أَجَابَهُمْ وَإِنْ اسْتَغْفَرُوهُ غَفَرَ لَهُمْ)ر

ژباړه: حج کوونکي او عمره کوونکي د الله تعالی ميلمانه دي که دعا وکړي الله يې قبلوي او کـــه بخښـــنه وغواړي هغوی ته بخښنه کوي.

دريم د حج د وجوب شرطونه:

د حج د وجوب شرطونه په کليزه توګه شپږ دي او هدف له دې شرطونو دادی چې که ذکر شوي شرطونه په کوم شخص کې پيدا شي حج پرې فرض دی او که يو له ذکر شوو شرطونو څخه په چا کې پيدا نشي. حـــج پرې فرض نه دی.

۱ – اسلام– شخص بايد اول مسلمان وي او په رښتينې توګه يې د توحيد کلمه ويلې وي هر کله چې حـــج عبادت دی او کفار په شرعي احکامو او اسلامي عباداتو مکلف نه دي. البته که څوک منافق وي او د نفاق په حالت کې د حج فريضه اداء کړي، مسلمانان د هغه په وړاندې هيڅ ډول مسئوليت نه لري چې هغه منـــع کړي اما حج يې د الله په وړاندې قبول نه دی.

۲– بلوغ: مسلمان چې څو بلوغ ته ونه رسيږي حج پرې فرض نه دی ځکه هغه شرعي مکلف نه دی. پـــه حديث کې راغلي دي: چې يوې ښځې خپل ماشوم د رسول الله ﷺ لوري ته اوچت کړ او ويې ويل: (أَلِهَذَا حَجٌّ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ نَعَمْ وَلَكِ أَجْرٌ). ژباړه: اې د الله رسوله! پر دې ماشوم حج فرض دی؟ رسول الله ﷺ و فرمايل: بلې حج کړلی شي خو اجر يې تاته رسيږي، نو معلومه شوه چې هغه ماشوم په خپله مکلف نه ؤ څـــو خپل اجر ووينې.

۳– عقل: نو په ليوني حج نه دی فرض، ځکه دی په شرعي تکاليفو مکلف نه دی (رُفِعَ الْقَلَمُ عَنْ ثَلَاثَةٍ عَـــنْ الْمَجْنُونِ الْمَغْلُوبِ عَلَى عَقْلِهِ حَتَّى يَفِيقَ...) يعنې شرعي تکليف له دريو تنو څخه مرفوع شوی دی چې يو لـــه هغو نه ليونی دی تر څو په هوش کې راشي.

۴– حديث ( آزادي) دلته مراد له آزاد څخه د غلام مقابل دی نو حج په مسلمان غلام فرض نه دی، ځکـــه غلام د مال خاوند نه دی مال او قدرت هم د حج له شرطونو څخه دی. اما که بادار يې ورته اجازه وکـــړي بيا يې حج صحيح دی او د بادار له اجازې پرته که حج وکړي ګنهګار دی او کله چې بيا آزاد شـــو حـــج فرضي به دوباره اداء کوي.

۵– استطاعت يعنی مالي قدرت: د حج د فريضې اداء کولو لپاره مالي توان شرط دی که مال ونه لري حج نه دی پرې فرض، ځکه الله تعالی فرمايي:﴿ وَلِلَّهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلا﴾.

۶– د حج وخت: يعنی حج په يوه مخصوص وخت کې اداء کيږي هغه وخت د حج له مياشتو څخه عبارت دی چې په قرآن کريم کې هم د حج په مياشتو نومول شوې دي.( الْحَجُّ أَشْهُرٌ مَعْلُومَـــاتٌ ...)شـــوال، ذی القعده او لس ورځې د ذی الحجې دي.

اته ویشتم لوست

# حیاء

**صفحه: ۵۹**

**وخت: یو درسي ساعت:**

**د لوست موخې: زده کوونکي باید:**

- د حیاء لغوي او معنوي معنا وپیژني.
- په ژوندانه کې د حیاء د صفت په ارزښت وپوهیږي.
- د حیا د فضیلتونو لپاره دلایل ذکر کړی شي.
- په دې یقین ولري چې څوک حیا پریږدي هغه هر ناروا کار کولای شي.

**اړینه پوهه**

**حیاء په اصطلاح کې:** د حیاء اصطلاحي تعریف په هکله علماوو مختلف تعریفونه کړي دي چې موږ دلته په یوه تعریف بسنه کوو. امام راغب وایي: حیاء د بدیو په وړاندې د نفس له انقباض ( زړه تنګی) څخه عبارت ده.

نو کولای شو ووایو چې حیاء د انسان په وجود کې یو نیک او لوړ صفت دی چې حتی دده د ایمان یوه برخه ګڼل کیږي.

**د حیاء صفت د اسلامي دین د اعتدال ښکارندوی دی:**

د یهودو په ښوونو کې فاطعیت او سختي شتون درلود، حال دا چې د حضرت عیسی علیه السلام ښوونې د عفوې او ښښنې څخه ډکې وې. اما د اسلام مبین دین د دواړو تر منځ په اعتدالي توګه د بشرد هدایت لپاره راغلی دی، معلومه ده چې ټول ادیان بشریت ښو او ښکلو اخلاقو ته را بولي نو له همدې کبله رسول الله ﷺ فرمایلي دي:(إ إِنَّ لِكُلِّ دِينٍ خُلُقًا وَخُلُقُ الْإِسْلَامِ الْحَيَاءُ). یعنی هر دین په اخلاقو او نیکو خویونو باندې امر کړی دی او د اسلام اخلاق حیاء ده. پیغمبرﷺ غوښتي چې مسلمانان د خیر، ښېګنې او فضایلو په لاس ته راوړلو او د بدی او رذایلو په پیژندلو کې حساسیت ولري او په فطرت کې یې دې انګیزه او احساس ریښې ټینګې کړي چې نور د فرضیت په ترسره کولو او د رذایلو په پریښودلو کې په ثواب او عذاب پسې ونګرځي لکه څنګه چې ابن جوزی رحمه الله په دې هکله فرمایي: فرض کړه که چیرې الهي پیغمبران نه وی راغلي اود دوزخ اور بل وی ایا دا واجب او لایقه نده چې بندګان د خپل منعم او پروردګار څخه شرم او حیاء ولري.

**حیاء او ایمان یو د بل سره ژورې اړیکې لري:**

د فضیلت ضد کارونو او بدیو ارتکاب په حقیقت کې د دې ښکارندوی دی چې انسان د حیا صفت له لاسه ورکړی، او د اخلاقي ارزښتونو پر ضد کړنو باندې استمرار او مداومت ورو ورو ایمان هم ور څخه سلبوي

**لکه چې رسول اللهﷺ فرمايلي دي: (ا الحياء والإيمان قرنا جميعا فإذا رفع أحدهما رفع الآخر** ( حـاكم ).

**ژباړه: يعنی ايمان او حيا يو د بل سره لازم او ملزوم دي هر کله چې يو ور څخه زائل شي بل يې هم زائـــل کيږي.**

**په بل روايت کې داسې راغلي دي:** ( الْحَيَاءُ وَالإِيمَانُ مَقْرُونَانِ، لا يَفْتَرِقَانِ إِلا جَمِيعًا)

**ژباړه: يعنی ايمان او حيا يو د بل سره پيوند لري او يو له بل څخه نه جلا کيږي مګر دا چې دواړه له منځــه لاړ شي.**

نه ويشتم لوست

# تواضع

صفحه: ٦١

وخت: يو درسي ساعت.

دلوست موخې– زده كوونكي بايد:

– د تواضع معنا او مفهوم وپيژني.

– وپوهيږي چې تواضع د انسان لپاره يو ښه صفت دی.

– د پيغمبرﷺ د تواضع څه نمونې بيان كړی شي.

– په دې باور ولري چې تواضع د سرې مقام لوړوي.

**اړينه پوهه**

**د تواضع مفهوم:**

د تواضع لفظ د وضع څخه مشق دی او وضع د شي د ايښودلو او ټيټولو په معنا ده او له دې كبله د ماشوم زيږيدو ته د حمل وضع وايي، ځكه ماشوم په ځمكه ايښودل كيږي او مفهوم يې د اسلامي اخلاقو له نظـــره دادی چې انسان خپل ځان د الله او د الله د مخلوقاتو (انسانانو) په وړاندې كوم مقام چې لري نو هغه ته ځان ټيټ تصور كړي. او د تواضع مقابل يا ضد تكبر دی يعنې وياړ او ځان لوی ګڼل. د تواضع صفت دومره مهم دی چې كله حضرت لقمان حكيم خپل زوی ته نصيحت كاوه ورته ويې ويل: ﴿و وَلَا تُصَعِّرْ خَدَّكَ لِلنَّاسِ وَلَا تَمْشِ فِي الْأَرْضِ مَرَحًا إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ كُلَّ مُخْتَالٍ فَخُورٍ ﴾. القمان: ١٨.

**ژباړه:**له خلكو نه مخ مه كړه وه، او خيالولي سره په ځمكه مه ځه. بې له شكه چې الله تعـــالى هـــيڅ لـــويې كوونكی، خوښې ښكاره كوونكی نه خوښوي.

شاعر هم وايي: تواضع گر هميخواهی رفيق بيد مجنون شو ** كه هر چند رو به بالا مرود سر برزمين دارد

يعنې كه عاجزي او تواضع غواړې اې رفيقه د مجنون ونه شه. هغه چې هر څومره لوړه ځي سر پـــه ځمكـــه ايږدي.

**د پيغمبرﷺ د تواضع نمونې:**

د عزتمن اسلام لارښوونو د تواضع او عاجزۍ په مسٔله ډير تاكيد كړی او هغه يې د يو اخلاقي مؤثر ارزښت په عنوان د ورور ګلوۍ او يو بل ته غاړه ايښودلو د فضا په رامنځ ته كولو كې معرفي كړې ده، انسان چې په هره سويه، مقام او مرتبه كې وي نبايد له دې لوی انساني ارزښت څخه غافل پاتې شي. تاسو د پيغمبرﷺ او صحابه وو په ژوند كې تواضع په لوړه پوړۍ كې ليدلای شئ د بيلګې په توګه رسول اللهﷺ په حجة الوداع كې چې يولک او څليرويشت زره صحابه وو كرامو دده سره ملګرتيا كوله هيڅ محافظ او دفاع كوونكی يې

نه درلود او هیڅ کوم ځانګړی ځای ورته په نظر کې نه و نیول شوی او چاته یې ونه ویل چې رسول الله ﷺ ته لاره پرانیزئ.

یوه ورځ حضرت عمر بن خطاب یو دروند پیټی په اوږو پورته کړ، ورته وویل شوه ولې اې د مؤمنانو امیره؟ عمر رضی الله عنه وفرمایل: نفس مې مغروره و ومې غوښتل ذلیل یې کړم. کله کله به عمر رضی الله عنه د موشوم لاس نیولو او ورته ویل به یې ماته دعا وکړه، ځکه تا ګناه نده کړې.

**د شپو او ورځو په ژوندانه کې د تواضع بیلګې (نمونې):**

د لویانو، علماوو په ځانګړې توګه د ښوونکو، استاذانو، مور او پلار او بوداګانو احترام او په کوچنیانو شفقت او مهرباني او د دوی سره د ښوونې په برخه کې مرسته او د دوی د نورو اړتیاوو پوره کول او د ګاوندیانو د حقوقو رعایت او ښه چار چلن ورسره کول ددې اخلاقي ارزښت غوره نمونې دي.

دیرشم لوست

# صله رحمی د خپلولۍ پالل

صفحه: ٦٣

وخت: یو درسي ساعت.

- د لوست موخې– زده کوونکي باید:
- د صله رحمۍ مفهوم وپیژني.
- د صله رحمۍ په ډولونو وپوهیږي.
- د قرآن او حدیث څخه د صله رحمۍ لپاره دلایل بیان کړی شي.
- باور ولري چې صله رحمي د الله د رحیم نوم څخه اخستل شوې ده.

**اړینه پوهه**

**د صله رحمۍ مفهوم:**

د صله لفظ له ((وصلت الشئ وصلا)) څخه اخستل شوی او د لغت له مخې د هجرت، پریښودلو او جدایی ضد معنا لري. په قرآن او حدیث کې دا معنا ډېره تکرار شوې ده او منظور یې دادی چې انســان د نســبي، خسرګنۍ یا زوملۍ له خپلوانو سره مرسته او همکاري وکړي او ددوی له اړتیاوو او ژوندانه څخــه خبــر واوسي او د دوی د ستونزو په لرې کولو کې د توان په کچې کوښښ وکړي. او ددې لفظ ضــد د صــله رحمۍ پریکول دي یعنې د خپلوانو سره مرسته او خواخوږي نه کول.

**د صله رحمۍ ډولونه:**

د صله رحمۍ نه همیشه پولي او مادي مرسته هدف نه وي، ځکه انسان کولای شي په مختلفو ډولونو دغــه خپله اسلامي دنده تر سره کړي یعنی په مال سره، په خدمت سره، په زیارت، سلام ورکولو، خیرغوښتنه، له هغوی نه د ظلم دفع کول، او که اشتباه ورڅخه وشي د هغې نه په عفوه او ښښنې او داسې نورو سره.

**صله رحمي د الله تعالی د لویو طاعتونو څخه ده:**

په کتاب او سنت کې راغلي نصوص دا راښیي چې صله رحمي په اسلام کې یومهم او لوی کار دی او پــرې کول یې له لویو ګناهونو څخه ګڼل شوې ده. د بیلګې په توګه:

١– الله تعالی د صله رحمۍ په رعایتولو امر کړی دی فرمــایي:﴿وَاعْبُدُواْ اللّهَ وَلاَ تُشْرِكُواْ بِهِ شَيْئاً وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَاناً وَبِذِي الْقُرْبَى وَالْيَتَامَى وَالْمَسَاكِينِ وَالْجَارِ ذِي الْقُرْبَى وَالْجَارِ الْجُنُبِ وَالصَّاحِبِ بِالجَنبِ وَابْنِ السَّبِيلِ وَمَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ إِنَّ اللّهَ لاَ يُحِبُّ مَن كَانَ مُخْتَالاً فَخُوراً﴾. ( النساء–٣٦آیۀ)

**ژباړه:**

**الله تعالی په بل ځای کې فرمايي: ﴿وَآتِ ذَا الْقُرْبَى حَقَّهُ وَالْمِسْكِينَ وَابْنَ السَّبِيلِ وَلاَ تُبَذِّرْ تَبْذِيرًا﴾** الاسراء: ۲۶.

**ژباړه: د خپل، مسکين او مسافر حق ورکړه او بې ځايه لګښت مه کوه.**

**۲- صله رحمي د اسلام او پيغمبرﷺ ددعوت لومړنۍ موخه:**

**دا مسأله دومره مهمه ده چې رسول اللهﷺ ددعوت په لومړيو ورځو کې د نورو مسايلو او موضوعاتو په ترڅ کې دغه مسألې ته ځای ورکړ کله چې د ابوسفيان بن حرب په حديث کې راغلي چې کله هرقل د پيغمبر ﷺپه هکله پوښتنه وکړه چې په څه شي تاسوته دعوت درکوي، ابوسفيان په ځواب کې وويل: (**يأمُرُنَا بالصَّلَاة وَالصَّدَقَة وَالْعَفَاف وَالصِّلَة**).**

**يعنی هغه موږ ته په لمانځه، په صدقه، په پاک لمنۍ او صله رحمۍ امر کوي.**

**يو ديرشم لوست**

# صداقت (رښتينولي)

**صفحه: ٦٥**

وخت: يو درسي ساعت.

د لوست موخې– زده کوونکي بايد:

د صداقت او رښتينولۍ په ارزښت وپوهيږي.

وپوهيږي چې صداقت او رښتينولي د پريشانيو څخه د نجات لامل دی.

د صداقت او رښتينولی په هکله معلومات ورکړی شي.

باور ولري چې صداقت غوره صفت دی.

**اړينه پوهه**

د صداقت او رښتينولۍ ارزښت:

حقيقت دادی چې رښتينولي او راستي د ايمان ښنه او د اسلامي عقيدې ښايست، مغز او جوهر ګڼل کيږي او د دروغو په وړاندې د ګناه، منافقت او بې دينۍ په لوري دريڅه ده، ګواکي بشري نيکمرغي او بدبختي ددوه شيانو په منځ کې څرخيږي يعنې د رښتيا او دروغو ترمنځ، ځکه رسول الله ﷺ وفرمايل: «الصـــدق ينجـــي الکذب يهلک» يعنی رښتيا نجات ورکوونکی او دروغ هلاکوونکی صفت دی.رښتيا او راستي هغه صـــفت دی چې د بشري تاريخ په اوږدو کې ټول د هغه په ښه والي اتفاق لري او په مقدسو او مطلوبـــو ارزښـــتونو پيژندل شوی دی او په اسلام کې هم رښتينولي يو عالي صفت ګڼل کيږي چې د هغه د رعايت لپاره په قرآن او سنتو کې ډول ډول نصوص راغلي دي چې د ټولو له ذکر کولو څخه معذور يو خو داسې اشـــاره ورتـــه کيږي.

**د صداقت او رښتينولۍ مقام او رتبه د قرآني آيتونو په رڼا کې:**

١– د اسلام پيغمبر او رښتيني پيروان يې په دې صفت ستايل شوي دي: ﴿ وَالَّذِي جَاءَ بِالصِّدْقِ وَصَدَّقَ بِهِ أُوْلَئِكَ هُم الْمُتَّقُونَ﴾ الزمر: ٣٣

ژباړه: او هغه چا چې رښتينی پيغام راوړ او هغوی چې پيغام رښتيا وګاڼه نو همدوی پرهيز ګاران دي.

٢– رښتينولي د اسلامي دعوت له لومړنيو موضوعاتو څخه ګڼل کيږي لکه چې د ابوسفيان په حديث کې تيره شوه چی هغه وويل: ويأمرنا بالصلوة والصدق. يعنی پيغمبرﷺ موږ ته په لمانځه او رښتينولۍ امر کوي.

٣– صداقت او رښتينولي د ډيرو ګټو او ميوو لرونکې ده چې په دې توګه ورته اشاره کيږي:

الف– رښتينولي د نيکيو او ښايسته ګيو سر چينه ده او صداقت په حقيقت کې د دنيا او آخرت د کاميابيو او برلاسيو محور دی لکه چې پيغمبرﷺ فرمايلي دي: ((فان الصدق يهدي الی البر)) يعنی رښتينولي ســـړی د نيکيو په لور سوق کوي.

ب- صداقت د منافقت ضد او مقابل دی: ( ثلاث مَن کُنَّ فیه کانَ مُنَافِقاًإذاحدَّث کذب ) یعنی دری صفتونه داسې دي چې په هر چا کې شتون ولري هغه منافق دی، یو له هغه څخه چې کله خبره کوي دروغ وایي.

ج- صداقت او رښتینولي د پریشانیو او ستونزو څخه د نجات لامل ګرځي لکه څنګه چې په خوا زمانه کې څوتنه په غره کې په یوه غار کې ګیر شول، او لاره د وتلو نه وه، دوی یو بل ته وویل: (إنه والله یاهؤلاء لاینجیکم الا الصدق ) یعنې په الله قسم تاسو ته له دې پریشانی څخه پرته له رښتینولی بل څه نجات او خلاصون نشي درکولی، نوکومه رښتینولي او راستي یې چې مخکې کړې وه د هغه په واسطه یې له دې پریشانی نجات وموند.

**۴- رښتینولي او راستي د الله د رضایت لامل کیږي:**

د تبوک په جنګ کې چې مسلمانانو مال او وګړو ته ډیره جدي اړتیا درلوده، ځکه دښمن ډیر پیاوړی و او عام جنګ و، اما په مدینه منوره کې حضرت کعب بن مالک او دوه نورو صحابه وو ونشو کولای په دې تاریخي جنګ کې برخه واخلي، د پیغمبرﷺ او د اسلام د لښکر راستنیدو په حالت کې خلکو کعب رضی الله عنه ته دا تلقین وکړ چې دروغ ووایي او ځان ته نجات ورکړي، خو هغه دروغ ونه ویل او د خپل پاتې کیدو علت یې صادقانه ورته شرح کړ چې د همدې صداقت په پایله کې دده د توبې د قبولتیا په بیان کې قرآني بشارت نازل شو او الله او رسول یې ورڅخه راضي شول.

۵- خلک په هغو خلکو اعتماد کوي چې رښتینولي خپل کسب ګرځوي.

٦- رښتینولي او راستي په کسب او کار کې د برکت لامل کیږي.

په حدیث کې راغلي دي چې بایع او مشتري څو یو له بله جلا شوي نه وي اختیار لري، نو که چیرې په خپل تړون کې رښتیا ووایي او د خپل مال عیب او څرنګوالی بیان کړي نو الله یې په معامله کې برکت اچوي او که دروغ ووایي او د خپل مال عیب پټ کړي د معاملې برکت یې هم له منځه ځي.

دوه دیرشم لوست

# د مور او پلار پیروي

صفحه:٦٧

وخت: يو درسي ساعت.

د لوست موخې زده کوونکي بايد:

- وپوهيږي چې د والدينو پيروي واجب ده.
- وپوهيږي چې مور او پلار ته بده خبره او نافرماني يې حرامه او گناه ده.
- وکولای شي د مور او پلار د حقوقو په هکله توضيحات ورکړي.
- باور ولري چې د مور او پلار سره نيکي د دواړو جهانو نيکمرغي را منځ ته کوي او نافرمايي يې د دواړو جهانو بربادي ده.

**اړينه پوهه**

د مور او پلار پيروي د توحيد سره يوځای بيان شوې ده.

لکه چې پوهيږی چې د مور او پلار اطاعت او پيروي پر اولاد د کورني نظام له لويو مسؤليتونو څخه گڼل کيږي. او الله تعالی د اسراء په سورت کې وروسته له دې چې په خپل عبادت او لمانځنې امر کوي ورپسې د مور او پلار د حقوقو په رعايت، احترام او اطاعت هم امر کوي فرمايي:

﴿وَقَضَى رَبُّكَ أَلاَّ تَعْبُدُواْ إِلاَّ إِيَّاهُ وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا إِمَّا يَبْلُغَنَّ عِندَكَ الْكِبَرَ أَحَدُهُمَا أَوْ كِلاَهُمَا فَلاَ تَقُل لَّهُمَا أُفٍّ وَلاَ تَنْهَرْهُمَا وَقُل لَّهُمَا قَوْلاً كَرِيمًا﴾. الاسراء: ٢٣.

ژباړه: او ستا رب پريکړه کړې ده، چې پرته له هغه نه د بل هيچا عبادت مه کوئ او له مور او پلار سره ښه چال چلند کوئ. که له هغوی نه يو يا دواړه زړښت ته ورسيږي. نو اُف هم مه ورته وايئ او مه يې رټـئ او خورا نرمې او مهرباني خبرې ورته کوئ.

يعنی د مور او پلار پيروي په روا او مشروع امورو کې واجب ده، اسلامي شريعت مسلمانانو ته په دې مسؤليت امر ورکړی او سالم عقل يې خوښوي. د اولاد اطاعت او پيروي حتی هغه مور او پلار ته هم شامليږي چې مسلمان نه وي. خو په گناه او ناروا کارونو کې يې اطاعت نشته؛ څکه وايي«لاطاعة لمخلوق فی معصية الخالق»: يعنی د خالق د نافرمانۍ په صورت کې د مخلوق پيروي نشته. څکه الله تعالی په دې اړه فرمايي:﴿ وَإِنْ جَاهَدَاكَ عَلَى أَنْ تُشْرِكَ بِي مَا لَيْسَ لَكَ بِهِ عِلْمٌ فَلَا تُطِعْهُمَا وَصَاحِبْهُمَا فِي الدُّنْيَا مَعْرُوفًا وَاتَّبِعْ سَبِيلَ مَنْ أَنَابَ إِلَيَّ ثُمَّ إِلَيَّ مَرْجِعُكُمْ فَأُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ﴾ لقمان سوره (١٥) آيت.

ژباړه: خو که هغوی پرته فشار راولی چه له ماسره ته داسې څه شريک کړې چې تا ته د هغه معلومات نه وي، نو د هغو خبره هيڅکله مه منه، په دنيا کې له هغو سره غوره چلند کوه خو پيروی دهغه چادلارې وکړه چې

هغه زمالوري ته رجوع کرې ده بیا ستاسې ټولو راګرځیدل همدا زما لوري ته وي په هغه وخت کې پــه زه تاسې ته ونیسیم چه تاسې څه عمل کاوه.
(أَنِ ٱشكُر لِي وَلِوَٰلِدَيكَ إِلَيَّ ٱلمَصِيرُ).
ژباړه: زما شکروکړه او دخپل مور او پلار شکر پر ځای کړه، همدا زمالوري ته ستا را ګرځیدل دي.

**باید همیشه د مور او پلار د خدمتونو شکر ایستونکي واوسو:**

د مور او پلار په مقابل کې یو له ښایسته ادبونو څخه د دوی د هغو خدمتونو په وړاندې شکر ایستنه ده چې دوی د ژوندانه په اوږدو کې زموږ لپاره تر سره کړي دي؛ ځکه د ماشومتوب او ځوانۍ په منګ کـــې پــه ځانګړې توګه مور له هیڅ ډول هلو ځلو او زړه سوي څخه د خپل اولاد په هکله د خدمت تقصیر نه کوي، نو په همدې وجه ددوی د زحمتونو په وړاندې د شکر ایستنې او قدر پیژندنې ضرورت دی او الله تعالی ددوی شکر د خپل حمد او شکر په څنګ کې ذکر کړی او فرمایي: (أَنِ ٱشكُر لِي وَلِوَٰلِدَيكَ إِلَيَّ ٱلمَصِيرُ).
ژباړه: زما شکر اداء او د خپل مور او پلار او د ټولو رجوع ماته ده.

**د اسلام له نظره د مور مقام او رتبه:**

مور او پلار که هر څومره د ترحم او مهربانۍ وړ دي خو مور پر پلار باندې غوره والی او لومړیتوب لري، نو باید ډیره د احترام، اطاعت او تواضع مورد وګرځي؛ مور د حمل، د حمل دوضعې، شیدو ورکولو، ساتنه او پالنه کې ډیر زحمتونه ګالي او د اولاد آرامي او خوښي پر خپله آرامي او خوښي مخکې ګڼي او ډیری وخت د ماشوم د زانګو په څنګ کې په ځانګړې توګه د ناروغۍ په مهال بیداره پاتې کیږي. الله تعالی په دې هکله فرمـــایي:﴿ وَوَصَّيْنَا الْإِنْسَانَ بِوَالِدَيْهِ إِحْسَانًا حَمَلَتْهُ أُمُّهُ كُرْهًا وَوَضَعَتْهُ كُرْهًا وَحَمْلُهُ وَفِصَالُهُ ثَلَاثُونَ شَهْرًا﴾.
الاحقاف: ۱۵.

ژباړه:او موږ انسان ته امر کړي دی چې له مور او پلار سره ښیګڼه او نیکي وکړي. ځکه چې مور یې خورا په ستونزو په خیټه کې ساتلی او بیا یې په خورا سختۍ زیږولی دی د حمل او جلا کیدلو ټوله موده یې دیـــرش میاشتې ده.

## دري دیرشم لوست

# اسراف

صفحه: ۹۶

وخت: یو درسي ساعت

- د لوست موخې– زده کوونکي باید:
- د اسراف معنا او مفهوم وپیژني.
- وپوهیږي چی مال یو الهي نعمت دی.
- دا چی اسراف شرعاً یو ناسم عمل دی په دې دلایل بیان کړی شي.
- عقیده ولري چې اسراف په هر څه کې نا روا عمل دی.

**اړینه پوهه**

**مال الهي نعمت دی:**

پانگه او مال په حقیقت کې یو الهي نعمت دی او د انسان په دنیوي ژوندانه کې د ښایست او ښکلا لامل دی. الله تعالی فرمایي: ﴿ الْمَالُ وَالْبَنُونَ زِينَةُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَالْبَاقِيَاتُ الصَّالِحَاتُ خَيْرٌ عِندَ رَبِّكَ ثَوَابًا وَخَيْرٌ أَمَلًا﴾ الکهف: ۴۶

ژباړه: مال او ځامن یوازې د دنیا ښایست او سینگار دی نیک پاتې کارونه ستا د رب په وړاندې د غوره اجر او د غوره هیلو ارزښت لري.

**مال او پانگه یو بشري ضرورت دی:**

په باوري توگه ددې لپاره چې بشري ژوند دوام او استمرار ومومي نو مال او پانگه ډیر ضروري دي او هیڅ یوه شخص د هغه له ضرورت څخه انکار نه کوي او اسلام هم د مال او پانگې له درلودنې څخه تنها منع نه کوي بلکې د لاس ته راوړنې لپاره یې تشویق او ترغیب کوي، البته دا خبره دیاد ساتلو وړ ده چې اسلام د غیر شرعي لارو لکه غصب، رشوت، غلا او... د مال لاس ته راوړلوڅخه شدیداً مسلمانان منع کړي دي لکه چې الله تعالی فرمایي: ﴿يَا أَيُّهَا النَّاسُ كُلُواْ مِمَّا فِي الأَرْضِ حَلاَلاً طَيِّباً وَلاَ تَتَّبِعُواْ خُطُوَاتِ الشَّيْطَانِ إِنَّهُ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِينٌ﴾ البقره ۱۶۸

ژباړه:اې خلکو! د ځمکې حلال پاک ښیزونه وخورئ او د شیطان په پل مه ځئ. ځکه چې هغه ستاسې ښکاره دښمن دی.

همدارنگه الله تعالی خپلو بندگانو ته امر کوي چې د حرام مال له خوړلو څخه ځان وژغوري.﴿ وَلاَ تَأْكُلُواْ أَمْوَالَكُم بَيْنَكُم بِالْبَاطِلِ وَتُدْلُواْ بِهَا إِلَى الْحُكَّامِ لِتَأْكُلُواْ فَرِيقاً مِّنْ أَمْوَالِ النَّاسِ بِالإِثْمِ وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ﴾ البقرة(۱۸۸).

ژباړه:او تاسې خپل مالونه په خپلو مينځو کې په ناروا مه خورئ او مه يې واکدارانو ته ور وړئ ترڅو د خلکو د مالونو يوه برخه په ناروا سره وخورئ. او تاسې پوهيږئ چې دا مال پردی او ناروا دی.

**اسراف يو ناسم عمل دی:**

ځنې وختونه انسان مال او پانگه چې په حقيقت کې د الله تعالی نعمت او د بشري ژوندانه د دوام او استمرار وسيله گڼل کيږي، د اسلام او محمدي شريعت سره په مخالفت کې په غير اسلامي لارو او يا په مشروع لارو کې خو پرته له ضرورت او احتياجه په ډيره بې توجهی مصرفوي چې شرعا هغه ته اسراف ويل کيږي او اسلام له اسراف او په مجموع کې د مال او شتو له ضايع کولو منع کړيده او هغه شخص ته يـې د شـيطان ورور ويلی دی. الله تعـالی فرمـايي: ﴿ وَآتِ ذَا الْقُرْبَى حَقَّهُ وَالْمِسْكِينَ وَابْنَ السَّبِيلِ وَلَا تُبَذِّرْ تَبْذِيرًا (٢٦) إِنَّ الْمُبَذِّرِينَ كَانُوا إِخْوَانَ الشَّيَاطِينِ وَكَانَ الشَّيْطَانُ لِرَبِّهِ كَفُورًا ا﴾ الاسراء٢٧.

ژباړه: د خپل، مسکين او مسافر حق ورکړه او بې ځايه لگښت مه کوه، په دې کې شک نشته چې بې ځايـه لگښت کوونکي د شيطانانو وروڼه دي او شيطان د خپل رب شکر نه دی پر ځای کړی.

په بل ځای کې الله تعالی فرمايي:﴿ يَا بَنِي آدَمَ خُذُواْ زِينَتَكُمْ عِندَ كُلِّ مَسْجِدٍ وكُلُواْ وَاشْرَبُواْ وَلاَ تُسْرِفُواْ إِنَّهُ لاَ يُحِبُّ الْمُسْرِفِينَ﴾.الاعراف: ٣١

ژباړه: اې د آدم اولادې! بايد په هر جومات کې په خپله ښکلا سينگار اوسئ وخورئ او وڅښئ خو اسراف مه کوئ ځکه چې الله تعالی اسراف کوونکي نه خوښوي.

ددې آيتونو څخه په ښه توگه دا استنباط کولای شو چې اسلام څومره د مال او پانگې او شتو په قضيه کـې اعتدالي او موزون قوانين او اصول مطرح کړي دي که په حقيقت کې په منصفانه نظر وليده شي متوجه کيږو چې اسلام د مالي قوانينو په برخه کې د هغه ټول اړخونه په نظر کې نيولي دي او د هرې برخې لپاره يې قانون بيان کړی دی چې تر قيامته پورې د بشري نړۍ لپاره لاره پرانيزي. انسان چې په هره سويه او مقام کې اوسي نشي کولای له دې قوانينو څخه بې نيازه شي.

**د اسراف اسباب څه دي؟**

په دې برخه کې د اسراف او بنديز لپاره اسباب، لاملونه او انگيزې بيانوو چې د هغو له ډلې څخه:

١- د اسلامي لارښوونو په هکله د ځنو مسلمانانو ناپوهي: مسلمان تر اوسه پورې په دې نه پـوهيږي چـې اسراف يو خراب او ناسم امر دی او دنيوي تعزير او اخروي پوښتنه لري.

٢- په اسراف کې کله ځنې اشخاص په دې دليل چې د اسراف کوونکې کورنۍ په غيږه کې يې پالنه او تربيه موندلې ده، نو په دې وجه اسراف د دايمي او مستمر عادت په عنوان لکه د مخدرو توکو د معتاد په څيريـې دده په ژوندانه کې ځای نيولی او اوس له هغو څخه راتلونکې ته نظر نه کوي:

کله ځنې خلک د خپل راتلونکې په فکر کې نه وي او فکر کوي چې دا قدرت، پانگه او امکانات به هميشه پاتې وي، حال داچې هيڅوک خپله راتلونکې نشي تضمين کولای او الهي سنت او طريقه هم په طبيعت کې

همدا ډول ده چې کله بډای او پانګوال خلک په ذلیل درویزه ګر بدلیږي او بیوزلي په لوی سرمایه دار قدرت بدلیږي نو باید مال او شته بې ځایه ضایع نشي او باید اخروي ذخیرې او راتلونکې ته متوجه و اوسي.

**۴- د اسراف کوونکو سره ملګري او اوسیدنه:**

ځنې وختونه د هغو کسانو سره ناسته پاسته چې دوی د اسراف په ناوړه او بد صفت مشـــغول وي، انســـان اسراف او تبذیر او د مال ضایع کولو ته هڅوي.

**۵- ویاړ او فخر کول:**

همدارنګه ځنې خلک غواړي چې خپل اسراف نوروته وښیي چې له مالي توان او قدرت څخه برخمن وي او هر څه چې غواړي کولای شي هغه تر سره کړي، او دا چې نورو په عروسۍ، خیرات او ختم او نورو.... کې څومره مال مصرف کړ نو دی ولې دومره مصرف نکړي. او که یې مصرف نکړي نو بیا هغه ته ممسک او بې غیرته ویل کیږي، دا جاهلانه دود او عادت دی چې خلکو موږ له دې لویې ستونزې سره مخ کړي یو.

**څلور دیرشم لوست**

# حجاب (پرده)

صفحه: ۷۱

وخت: یو درسي ساعت.

دلوست موخې – زده کوونکي باید:

- د حجاب مفهوم و پیژني.
- د اسلامی حجاب ښیګڼې او د بې حجابۍ عیبونه درک کړي.
- د حجاب په هکله د آیتونو او احادیثو څخه معلومات ورکړی شي.
- عقیده ولري چې حجاب په اسلام کې د دین د ضروریاتو څخه دی.

**اړینه پوهه**

**د اسلام موخه له حجاب څخه څه ده؟**

د اسلام مبین دین چې د بشري ټولنو د هدایت لپاره کوم قوانین او دستورالعملونه وړاندې کړي ،مسلمانو ښځو ته یې خاصه او ځانګړې توجه کړې ده او د ژوند په هره برخه کې یې دوی د الهي دین د عنایت مورد ګرځولي دي ، هغه که د علم او پوهې د زده کړې په برخه کې وي او که د مال د تملک او کسب کار په ساحه کې وي او که د عزت او انساني او اسلامی کرامت په هکله وي، یو له الهي عنایتونو څخه د دوی د حجاب مسٔله ده چې په حقیقت کې حجاب ددې لپاره نه دی چې دوی مقیدې اویا په ځنځیرونو وتړي ، بلکې د بیلاریتوب له عینکو پرته او د ړوندو تقلیدونو څخه لرې که دې قضیې ته وګورو نو د اسلامي حجاب څخه موخه په حقیقت کې د دوی د عفت (پاک لمنی) او عزت ساتنه ده او کوم محدودیتونه چې د ښځو په لباس او ښایست وضع شوي د هغو د فساد مخه پرې نیول کیږي نو هغه څه چې اسلام په ښځو وضع کړي دا د ښځو په آزادۍ د محدودیت په معنا نه دي بلکې اسلام غواړي هغه د ذلت په کندوکې له لویدلو وژغوري اوله رسوایۍ څخه نجات ورکړي.

**په اسلام کې د حجاب ارزښت او مقام :**

۱– حجاب او د الله او د هغه د رسول فرمانبرداري :

د اسلامي حجاب مراعاتول په حقیقت کې د الله او رسول د پیروۍ او اطاعت ښکارندوی دی او کوم مسلمان چې د حجاب په هکله د مشکل سره مخ دی هغه دې په دې وپوهیږي چې ده الله او د الله د رسول سره سنګر نیولی دی او د الله د فرمان سره مخالفت او سرکشي لري . الله تعالی فرمایي:﴿وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَ لا مُؤْمِنَةٍ إِذَا قَضَى اللهُ وَ رَسُوْلُهُ أَمْراً أَن يَّكُوْنَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ مِنْ أَمْرِهِمْ وَ مَن يَّعْصِ اللهَ وَ رَسُوْلَهُ فَقَدْ ضَلَّ ضَلالاً مُّبِيْناً﴾. الاحزاب: ۳۶.

ژباړه:او کله چې الله تعالی او د هغه رسولﷺ د کوم کار پریکړه وکړي نو هیڅ مؤمن سړی او مؤمنه ښځه حق نه لري چې د خپل همغه کار په هکله اختیار من اوسي. او هر چا چې له الله تعالی او رسول اللهﷺ نه سر وغړاوه، نو په رښتیا چې په ښکاره یې لیار ورکه کړه.

همدارنګه الله تعالی فرمایي: ﴿وَ قُلْ لِّلْمُؤْمِنَاتِ يَغْضُضْنَ مِنْ أَبْصَارِهِنَّ وَ يَحْفَظْنَ فُرُوْجَهُنَّ وَ لا يُبْدِيْنَ زِيْنَتَهُنَّ إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَ لْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَي جُيُوْبِهِنَّ﴾. النور: ۳۱.

ژباړه:او مؤمنو ښځو ته ووایه چې: خپلې سترګې ټیټې او د خپل شرم ځایونه پټ وساتي. او خپل ښایست دې پرته له هغه چې ښکاره دي نه په ډاګه کوي او خپل پوړني دې، پر خپلو سینو او ټټرونو خپاره کړي.

**د چټلیونه حجاب او پاکي:**

دا د شک او تردید ځای نه دی کوم کسان چې خپل حجاب ته متوجه او په هغه همیشوالی کوي هغه په ټولنه کې په بشپړ شرافت او عزت او سرلوړۍ کې ژوند کوي ځکه الهي وعده ده چـــې فرمـــایي: ﴿ وَالَّذِينَ إِذَا أَنفَقُوا لَمْ يُسْرِفُوا وَلَمْ يَقْتُرُوا وَكَانَ بَيْنَ ذَلِكَ قَوَامًا ﴾. الفرقان ٦٧.

ژباړه: او هغه کسان دي چې کله مال لګوي نو نه اسراف کوي او نه بیخي لاس نیسي بلکې د دواړو په منځ کې روان وي.

**حجاب او تقوی:**

ښه او اسلامی لباس او جامه په حقیقت کې د شخص د تقوی او پرهیزګارۍ ښکارندوی ګڼل کیږي، الله تعالی فرمایي: ﴿ يَا بَنِيْ آدَمَ قَدْ أَنْزَلْنَا عَلَيْكُمْ لِبَاسًا يُّوَارِيْ سَوْآتِكُمْ وَ رِيْشاً و لِبَاسُ التَّقْوَي ذَالِكَ خَيْرٌ﴾ الاعراف: ۲۶.

ژباړه: اې د آدم اولادې! موږ تاسې ته کالي درکړي چې شرم ځایونه مو وپوښي او د بدن د ساتنې او ښـــکلا وسیله مو وي. د تقوا او پرهیګارۍ کالي تر ټولو غوره دي.

**د اسلامی لباس (حجاب)ځانګړتیاوې :**

غواړم په لاندې کرښوکې د اسلامي جامې د حجاب څو صفتونه او ځانګړتیاوې ذکر کړو څو دا پوښتنه پاتې نشي چې اسلامي حجاب یعنې څه؟

د ښځې ټول بدن و پوښي .

- حجاب ښایسته نه وي.
- آزاد او پراخه وي.
- معطر او خوشبویه نه وي.
- د غیر مسلمانو ښځو له لباس سره مشابه نه وي.
- د نارینه وو له لباس سره مشابه نه وي.

مشهور لباس نه وي.

# د صدقې فضیلتونه

صفحه :۷۳

وخت: یو درسي ساعت.

دلوست موخې – زده کوونکي باید:

- د صدقې او د الله په لارکې د مال لګولو په مفهوم وپوهیږي.
- دا خبره درک کړي چې په صدقه او د الله په لارکې مال لګول د روح د آرامۍ لامل ګرځي.
- په دې عقیده ولري چې په صدقې سره ګناهونه بخښل کیږي.
- د صدقې او مال لګولو په هکله نورو ته ترغیب ورکړی شي.

**اړینه پوهه**

**د الله په لاره کې نفقه (مال لګول) الله ته د نیږدیکت ذریعه ګرځي:**

د الله په لاره کې مال لګول هم د الله هغه نعمت دی چې د خپل بنده په واک کې یې ورکړی ، دا هـــم د الله تعالی د لطف او مهربانۍ ښکارندوی دی نو مسلمان باید د دې فرصت ښخه ګټه واخلي ، د ځان لپاره د الهي نږدیکت زمینه برابره کړي ، الله تعالی فرمایي: ﴿وَ منَ الاْعْرَاب مَن يُؤْمنُ باللّه وَالْيَوْم الاْخر وَ يَتَّخذُ مَا يُنفقُ قُرُبَت عندَ اللّه وَ صَلَوَ ت الرَّسُول أَلاَ إِنَّهَا قُرْبَةٌ لَّهُمْ سَيُدْخلُهُمُ اللَّهُ فى رَحْمَته إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحيم﴾. التوبه: ۹۹.

ژباړه: او په بانډه چي عربانو کې هغه هم شته چې په الله تعالی او د قیامت په ورځ ایمان راوړي . او د مـــال ښندنه او لګول الله تعالی ته د نژدې کیدلو او د رسول الله صلی الله د دعا ګانو د تر لاسه کولو وسیله ګڼـــي باید اعلان کړم چې په همدې نژدې کیږي ډیر ژر به یې الله تعالی په خپل رحمت کې داخل کړي بې شکه چې الله تعالی ښه بښونکی او ډیر مهربان دی.

**صدقه او د الله په لارکې انفاق د روح د آرامۍ لامل ګرځي:**

الله تعالی فرمایي: ﴿وَلَقَدْ أَخَذَ اللّهُ ميثَاقَ بَني إِسْرَآئيلَ وَبَعَثْنَا منهُمُ اثْنَيْ عَشَرَ نَقيبًا وَقَالَ اللّهُ إِنِّي مَعَكُمْ لَئنْ أَقَمْتُمُ الصَّلاَةَ وَآتَيْتُم الزَّكَاةَ وَآمَنتُم برُسُلي وَعَزَّرْتُمُوهُمْ وَأَقْرَضْتُمُ اللّهَ قَرْضًا حَسَنًا لَّأُكَفِّرَنَّ عَنكُمْ سَيِّئَاتكُمْ وَلأُدْخلَنَّكُمْ جَنَّات تَجْري من تَحْتهَا الأَنْهَارُ﴾ المائده: ۱۲.

ژباړه: الله تعالی له بنی اسرائیلو ښخه وعده اخیستې وه او موږ په هغوی کې دولس مشران ټـــاکلي وو او الله تعالی ورته ویلي وو چې زه په باوري توګه له تاسې سره یم او قسم دی که تاسې لمونځونه ودرول، زکاتونـــه مو ورکړل ، زما په رسولانو مو ایمان راوړ او د هغوی ملاتړ مو وکړ او الله تعالی ته مو د زړه لـــه اخلاصـــه

قرض ورکړ نو زه به خامخا او هرو مرو ستاسې ګناهونه ورژوم او هغو جنتونو ته به مو داخل کړم چې لاندې ترې ويالې بهيږي.

**په يوه صدقه کې څونفره بدله اخلي :**

**د عائشې صديقې رضی الله عنها څخه روايت شوی دی چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي (إذا أنفقت المرأة من طعام بيتها غير مفسدة كان لها أجرها بما أنفقت، ولزوجها أجره بما كسب، وللخازن مثل ذلك، لا ينقص بعضهم أجر بعض شيئاً)..**

ژباړه: هرکله چې ښځه د خپل کور له خوراک څخه په داسې حال کې چې د تخريب او فساد نيت ونلري، د الله جل جلاله په لارکې نفقه او مصرف وکړي ، الله تعالی ديته د نفقه کولو اجر ورکوي ، ميړه تــه يــې د کسب او لاس ته راوړلو اجر ورکوي او ساتونکي ته يې هم ورکوي او د يو او بل ثواب هم نه کموي.